# د عبدالحمید مومند

# د شاعرۍ ترڼګونه



**شاه محمود کړوال**

۱۳۹۳ ل کال







## کتاب پېژندنه:


د کتاب نوم : د عبدالحمید مومند د شاعرۍ ترنګونه

لیکوال : پوهنمل شاه محمود کډوال

خپروندی : د افغانستان ملي تحریک

کمپوز : لیکوال

پښتی ډیزاین : فیاض حمید

چاپشمېر : ۱۰۰۰

چاپکال : ۱۳۹۳




# د تحریک یادښت

فرهنګي څانګه د افغانستان ملي تحریک له اساسي څانګو څخه یوه ده. د دې څانګې دنده داده چې هېوادوالو ته فرهنګي خدمات وړاندې او ګټور فرهنګي کارونه ترسره کړي. د تاریخي، ملي، کلتوري ورځو او تاریخي او ملي شخصیتونو نمانځل ددې څانګې نورې دندې دي.

د هېواد د لیکوالو د علمي، دیني، روزنیزو او معلوماتي اثارو چاپ هم ددې څانګې له اساسي دندو څخه ګڼل کېږي. له هغې ورځې راهیسې چې تحریک خپل عملي فعالیتونه پیل کړي دي، نو دې څانګې هم ورسره سم خپل فعالیتونه چټک کړي دي. تاریخي ورځې یې نمانځلي، تاریخي واټونو ته یې لوحې جوړې کړي. علمي سیمینارونه او ورکشاپونه یې جوړ کړي دي.

د تحریک دې څانګې د تحریک د عمومي هدفونو په رڼا کې وپتېیله چې په یوځایي ډول (شل عنوانه) کتابونه چاپ کړي. په دې اثارو کې اکثره دیني او علمي اثار شامل دي چې درنو هېوادوالو ته یې وړاندې کوي.

دا اثر (د عبدالحمید مومند د شاعرۍ ترنګونه) چې ستاسو په لاس کې دی، ښاغلي (پوهنمل شاه محمود کدوال) لیکلی او د همدغو شلو عنوانو اثارو له جملې څخه دی. هیله ده درانه لوستونکي ترې ښه ګټه پورته کړي. تحریک خپلو هېوادوالو ته ډاډ ورکوي چې په راتلونکي کې به هم خپلو دې ډول هڅو ته دوام ورکړي.

د هېواد د فرهنګ د بډاینې په هیله<br>
په درناوي<br>
د افغانستان ملي تحریک<br>
فرهنګي څانګه





پیلیزه

حمیدبابا د پښتو ادب د منځنۍ ادبي دورې هغه شاعر دی ، چې شعرونه یې له بېلابېلو اړخونو د څېړنې او کتنې وړ دي . دی شعر په ربښتیني مانا خلکو ته وړپېژني او ډېره خوږه شاعري کوي . د ده شعرونه د شعر په اړینو توکو ښکلي او سمبال دي . خپله موخه په ښکلي هنري ژبه څرګندوي او لوستونکی له ځان سره د خیال په نړۍ ورننباسي .

په شعر کې ترنګ جوړونه یا شاعرانه ترنګونه هغه موضوع ده ، چې په پښتو ژبه کې پرې نوي نوي بحثونه پیل شوي دي . که څه هم دا ترنګونه له وړاندې د بېلابېلو شاعرانو په ویناوو کې وو ، خو څېړل شوي نه وو .

هېره دې نه وي چې څېړنه هغه وخت ډېره ښه پرمخ ځي ، چې د موضوع په اړه پراخ مالومات او سرچینې شتون ولري . که داسې نه وي ، څېړونکی له ډېر کړاو سره مخیږي . له بده مرغه دا موضوع ، چې ما څېړلې ، په پښتو ژبه کې وړاندې ښه څېړل شوې نه ده . د مالوماتو او سرچینو له کمښت سره مخ شوم . خو په هر صورت خپله بېړۍ مې ساحل ته ورسوله .

دا ( شاعرانه ترنګونه ) او دې ته ورته موضوعات ، چې له یوې خوا په ژبه او بله خوا په ادب او هنر پورې تړاو لري ، په کار ده څېړونکی په دواړو برخو کې څه ناڅه مالومات ولري . په شعرونو کې ډېر ژبني توکي خپل ځای ونجوي همداسې ترنګونه هم دي ، چې یوه برخه یې د یوه بیت یا نیم بیتي په یوه ځای او بله برخه یې په بل ځای کې وي ، د دواړو یو ځای کول لږ څه فکر غواړي. د دې ترخنګ د ترنګ مانا هم داسې موضوع ده ، چې پوهه ، تولنیز مالومات او علمي تجربه غواړي .



د ښېړنــې پــه بهيــر کــې ، د کابــل پوهنتــون ، د ژبــو او ادبيــاتو پــوهنځي ، د پښــتو ژبــې او ادب څــانګې ، زړه ســواند او مهربــان اســتاد پوهنــوال محمــد رفيــق (رفيــق ) لارښــوونواو مالومــاتو زمــا د ښېړنــې کــار ګړنــدی کــړ او پــه دې برخــه کــې يــې غــوره مشــورې ، د دې لامــل شــوې ، چــې خپــل کــار پــه ښــه توګــه پــای تــه ورســوم . همدارنګــه پــه دې برخــه کــې د اســتاد محمــد آصــف صــميم کتنــو هــم د آثــر پــه بشــپړتيا کــې ســتره ونــډه درلــودې ، چــې پــه تــرڅ کــې يــې آثــر د خپــراوي جوګــه شــو . همداســې د ښېړنــې پــه بهيــر کــې د کابــل او لغمــان پوهنتونــو لــه ځوانــو او تانــدو اســتادانو اورنګزيــب اســحاقزي او اجمــل ښــکلي د مرســتو لــه کبلــه ورتــه کــورودانی وايــم او د ټولــو د ســوکالۍ پــه هيلــه يم .

درنښت

شاه محمود کډوال





نیولیک







# سریزه

د ژبې په بډاینه کې شاعران ستره ونډه لري، دوی که له یوې خوا په خپلو شعرونو کې د خپل چاپېریال پېښې، واقعیتونه او اړتیاوې په هنري ژبه انځوروي ؛ له بلې خوا د ژبې په پراختیا او پرمختیا کې یاد وړ کار تر سره کوي.

د شعر په سیوري کې ترنګ جوړونه د شاعر کار دی او دا اړتیا هم تر ډېره په شعر کې ننګېرل کېږي. خو دا بیا د شاعر په ذهني ځواك، استعداد او پوهې پورې تړلې ده، چې څه ډول ښکلې ترنګونه جوړ کړي. ترنګونه د یوې مانا د څرګنداوي لپاره رامنځته کېږي. یو شمېر دا ترنګونه کېدای شي له وړاندې په ژبه کې وي او یو شمېر یې نوي وي. په دې مانا، چې د شاعر په فکر کې نوې پېښې او ماناوې رامنځته کېږي ، چې د ترنګ په جوله کې یې رانغاړي.

ترنګ هغه ژبنی یوون دی، چې تر یوه ډېر ژبني توکي لري. د یوې مانا لپاره جوړېږي. خو د غونډلې په څېر بشپړه مانا نه لري . په وییپوهنه کې ترنګ هغه وییونه رانغاړي ، چې تر یوه ډېر توکي لري ، لکه: پوهنتون، کرکر، لوګړی... په غونډله پوهه کې غونډله پوهیز ترنګونه، چې دا بیا له وییزو هغو سره توپیر لري، لکه: کابل ښار، افغان مېنه، ښاري ځانګه.

زموږ د څېړنې موضوع شاعرانه ترنګونه دي، چې د حمیدبابا شعرونو ته ځانګړې شوې ده. د دې ډول ترنګ له نامه څرګندېږي، چې په شعر پورې تړلي دي. په دې مانا ، چې تر ډېره په شعرونو کې کارېږي ؛ په هنري نثر کې یې هم کاریدنه شونې ده.

په یوه وېشنه کې ترنګ څلور ډوله (اضافي، وصفي، تشبیهي او استعاري) ښوول کېږي. خو په نورو کې بیا ډېر ډولونه لري. ترنګ وېشنه د بېلابېلو څېړونکو په آثارو کې په جلا توګه شوې ده، چې ډولونه یې، چا یو او چا بل ډول ښوولي دي.



یاده دې وي ، چې ګړنې (اصطلاحات، محاورې، امروزې، ایډیمونه) هم د شاعرانه ترڼګونو تر سرلیك لاندې څېړل شوي، هغه هم له دې لامله، چې ګړنه هم یو ترڼګ دی، په یوه ځانګړې شاعرانه مانا سره، چې تاسې به یې په دې لیکنه کې ولولئ.

## د نازکخیال حمید بابا لنډه پېژندنه

عبدالحمید مومند ، د پېښور په ماشوګګر کې زېږېدلی دی. د زوکړې باوري نېټه یې څرګنده نه ده. خو داسې ګمان کېږي، چې د یوولسمې هجري پېړۍ په پاي کې به زېږېدلی وي. ده متداول علوم لوستي او په ملا عبدالحمید مشهور وو. په پارسي ادبیاتو کې د پراخې مطالعې خاوند وو او په عربي هم پوهېده.

هانري جورج راورټي وايي، چې عبدالحمید مومند په **۱۱۴۵** هـ کال کې مړ شوی دی. د ده مړی د ماشوګګر په هدیره کې ښخ دی.

حمید د شعر ویلو عالي استعداد او مبتکر فکر درلود او د تازه مضمون په پیداکولو کې د مهارت خاوند وو. حمید د خپل ادبي فعالیت په دوران کې داسې رنګینه، ښکلې او په بدیعي ښکلاوو سمباله شاعري وکړه، چې وروستیو دی د موشګاف په لقب وستایه.

عبدالحمید مومند د شعر یو رنګین دیوان لري، چې زیاتره غزلې پکې راغلي دي. یو ترکیب بند ، مخمس، څو قصیده ډوله غزلې او دوې رباعي هم ورسره ملې دي.

عبدالحمید مومند د مولینا غنیمت کنجاهي نیرنګ عشق په روانه او خوږه پښتو مثنوي ژباړلی دی. د حمید ژباړه ازاده ژباړه ده او خورا لوړ ادبي قوت لري. ټول بیتونه یې ۱۸۱۸ دي، په داسې حال کې، چې د اصلي پارسي متن بیتونه ۱۵۰۰ دي. له نیرنګ عشق سربېره عبدالحمید مومند د هلالي چغتایي د شاه و درویش کیسه هم په خوږه او روانه مثنوي ژباړلې ده. حمید دا ژباړه د شاه و ګدا په نامه پر ۱۱۳۷



هـ کال بشپړه کړې ده. د حمید ژباړه هم خوره، خوندوره او هنري ده. پر دیوان، نیرنګ عشق او شاه و ګدا سربېره، ځینو څېړونکو د شرعة الاسلام مثنوي هم د عبدالحمید بللې ده (۱۴: ۲۱۵، ۲۱۶).

## د حمید بابا د شعر او شاعرۍ زمانه

د حمید بابا د ژوند ډېره برخه په هند کې د مغلو د واکمنۍ په بهیر کې تېره شوې ده، چې بنسټ یې ظهیرالدین محمد بابر په **۹۳۲** هـ کې ایښی وو او په هند کې د پښتون واکمن ابراهیم لودي په وژلو پیلېږي. له دې واکمنۍ سره د پښتنو مبارزه هم نږدې تر پایه روانه وه چې ستر مبارزین پیر روښان ، ایمل خان، دریاخان، خوشال خان ختک او نور په دې لړ کې د یادولو وړ دي.

که د حمیدبابا د زوکړې نېټه (۱۰۸۰ هـ) شاوخوا وبولو، نو په دغه وخت کې اورنګزېب (۱۰۶۸ هـ – ۱۱۱۸ هـ) د شاه جهان زوی، د هند د مغلي واکمنۍ پر ګدۍ ناست وو. د اورنګزېب د مرګ پر وخت، حمید بابا نږدې څلوېښت کلن وو، هغه په لاندې بیت کې د اورنګزېب مرګ ته نغوته کوي:

څه به شور نه وي د هند په میخانه کې ؟
چې اورنګ څخه د حکم جام نسکور شو

اروانباد پوهاند صدیق الله رښتین د (۱۱۳۰ هـ) کال شاوخوا د حمیدبابا د شاعرۍ او شهرت زمانه بولي (۲: ۶۱).

په لاندې بیت کې حمیدبابا د مغلي واکمنو د کړنو څرګندویي کوي:

دا څه دور د ګردون راغی وخت نور شو
چې شېوه د عادلانو ظلم زور شو

لاندې بیت هم د یو تاریخي حالت انځور کاږي:

چې د ښکلو د درګاه ګدایي مومي



هی توبـه د محمـدشاه له سلطنتـه

شهسـوار سنګروال نیـازی د دې بیت پـه اړه وايـي، چـې پـر هنـد بانـدې د احمدشاه بابا د برید پر وخت، هلته محمدشاه واکمن وو، که چېرته همدا محمدشاه وي ؛ نـو دی خـو د احمدشـاه بابـا معاصر دی او تـر دغـه وختـه ممکـــــــــن حمیــــــــــد بابـــــــــا ژونـــــــــدی وو (۸: ۱۷۷).

## د حمید بابا سبک

سبك عربي نومونه ده، چې د سرو او سپینو زرو د ویلې کولو او تویولو پـه مانا راځي. په اصطلاح کې سبك د ویلو او لیکلو ځانګړي ډول او طرز تـه ویل کیږي. د عربي د سبك په مقابل کې اروپایان د (Style) ویـی کـاروي، که څه هم، چې د ستایل ویی تر سبك ډېر پراخوالی او ارتوالی لـري ؛ ځکـه چې لوېدیځوال د ټولو کړو وړو (لکه نڅا ، رسم او داسې نورو) لپـاره، چـې په یوه ځانګړي او ممتـاز ډول سره وي (Style) کـاروي. د پاړسـو پخوانیـو ادیبانو به د سبك پرځای د فن، طرز، سیاق، طریقـه، شېوه اسلوب دا او داسې نور ویي کارول ؛ مګر اوس د سبك نومونـه او ویـی ډېـر دود شـوی دی (۴: ۷۱).

د پښتـو ادبیاتو ګرده څېړونکي او پوهـان پـه دې عقیـده دي، چـې د هنـدي سبك بنستهونه، په پښتو شاعرۍ کـې تـر هرچـا د مخـه عبدالحمیـد مومنـد دود کړي دي او زیار یې ایسـتلی دی. د دغـه ادبـي سبك لـه غوښـتنو سره سم، خو د اعتدال د حد په ساتلو سره، خپله شاعري عیـاره کـړې ده. د دې سبك لـه ځینـو ځانګړنو لـه خپلولـو سـره سره، حمیـد د خپـل شعر جولـه پښتني وساتله او دا پـه دې مانـا ، چـې ده پـه دې برخـه کـې منځلاری وو او په منځني ډول یې د هندي سبك بنستهونه خپل کړل (۱۳: ۳۰۹) .

ادبپوهانو د هندي سبك سترې ځانګړنې داسې ښوولي دي:

۱ – د دغه سبك تابع آثار زیاتره ابهام او پیچلتیا لري.



۲ - د دغه سبك خاوندانو د خپلو پخوانيو شعري دودونو په پرتله، نويو مضامينو او د تازه فکر د پيداکولو خواته پام کړی دی.
۳ - ايجاز د دې سبك بله ځانګړنه ده. د دغه سبك شاعران ډېرې خبرې په لنډو ويناوو کې څرګندولای شي.
۴ - دقيقو تشبيهاتو او ځانګړو استعارو په دې شعرونو کې ځانګړې وده موندلې ده.
۵ - د هندي سبك پيرو شاعران د خپلو شعرونو د هر شعر په مسرو کې تناسب ساتي. د تقابل، مراعات النظير، مدعا و مثل او حسن تعليل د ادبي صنايعو په پاللو کې ډېر پياوړي دي.
۶ - د دې سبك په شعرونو کې متلونه، ګړني او سيمه ييز ژبني توکي ډېر کارېږي.
۷ - د دې سبك شعرونه د يو ځانګړي آهنګ او لحن (غاړې) لرونکي دي.
۸ - د دې سبك غزلې زياتره د مينې پر محور چورلي، حال دا، چې تر دې سبك د پخوانيو شاعرانو په شعرونو کې بېلابېل موضوعات څرګند شوي دي . د دې سبك غزلې ځينې موضوعي بېلتون لري او همغږي پکې نه ليدل کېږي.
۹ - د هندي سبك پيرو شاعران زياتره د نکته سنجۍ او مضمون تراشۍ په فکر کې وي او د شعر دودېزو آرونو ته دومره پام نه کوي. د غزلو د بيتونو ډېروالی او د قافيې د تورو تکرار او نور د هندي سبك په پيروۍ رامنځته شوي شعرونو کې ليدل کېږي .
۱۰ - افراط، تفريط، اغراق او مبالغه د هندي سبك په تابع شعرونو کې ډېره ليدل کېږي (۱۴: ۲۱۴، ۲۱۵) .

سيد محی الدين هاشمي د هندي سبك ځانګړنې داسې راپېژني:



۱ – د نویو او بکرو خبرو لپاره هڅه.
۲ – مضمون پنځونه (آفریني).
۳ – د لفظي او معنوي صنعتونو په ډېرې کارونې سره د وینا پېچلتیا او کړکیچ.
۴ – په مبالغه کې غلو او افراط.
۵ – د مضمون او تشبیه د رامنځته کولو لپاره له چاپېریال او شاوخوا څخه ګټنه.
۶ – د ارسال المثل صنعت ډېره کارونه.
۷ – د تخیل زیاته ژورتیا (۱۱: ۹۵).



کوم څه، چې تر ټولو د مخه د حمید بابا په شعرونو کې د پام وړ دي، دادي:
۱ – حمید د هندي سبك پیرو دی او د دې سبك یو ستره ځانګړنه دا وه، چې شاعر به په شاعرانه دنیا کې د عشق یوه افسانوي نړۍ جوړوله او د هغې په بیان کې به یې ډول ډول خیال بافي کوله. د غزل په ډېره برخه کې به د معشوقې د سترګو، ښو، وروځو او قد ستاینه کېده. شاعر به د سترګو په ګولیو لګېدلی یا به د ښو په غشو ژوبل شوی وو او یا به د بېلتون په اور لولپه وو. خو هغه داسې یو شاعر نه دی، لکه د دې سبك نور لاروي، چې د مضمون مانا او موخه په الفاظو کې نغاړي او په مشکل سره ترې مانا اخېستل کېدای شي لکه کاظم خان شیدا.
۲ – د حمید بابا د شعرونو بله ځانګړنه داده، چې هغه د خپل مطلب او مدعا د اثبات لپاره له ارسال المثل څخه کار اخلي. البته نور ادبي او هنري صنایع، لکه تلمیح عارفانه تجاهل حسن تعلیل، استعارې، تشبیه او کنایې کارونه هم د ده د هنر غوره ننداره ده .



۳ - د حمید د شعرونو بله ځانګړنه داده، چې هغه ته د دغې دورې د نورو شاعرانو پرخلاف کارېدلي تشبیهات ښه نه ایسي او هڅه کوي، چې ډېر نوي او ابتکاري تشبیهات او استعارې بیامومي او همدارنګه هغه تشبیه او استعارې په خپلو شعرونو کې ځای کړي، چې په پښتني چاپېریال کې دود دي او پښتانه ورسره اشنایي لري.

۴ - د حمید په شعرونو کې نه یواځې نازك خیالي، نادر تشبیهات، استعارې، مبالغې او نورې ادبي پسولنې او یا د شاعرۍ دودیزو نومونو او سېمبولونو، لکه (بلبل، آهو چشم مجنون، لیلا، پتنګ، شمه، شیرین او فرهاد) دود موندلی دی ، بلکې د ده د شعرونو بله غوره ځانګړنه داده، چې هغه د ټولنې له ښو او بدوسره سیده اړیکی لري او د پندونو او وجیزو ترڅنګ داسې شعرونه هم لري، چې د ټولنې هر وګړي ته داسې ټولنیزه لارښوونه کوي، چې بنسټ یې پر کار باندې ولاړ وي (۵: ۲۶۹- ۲۷۱).



# تړنګ څه ته وايي ؟

تړنګ هغه ژبنی یوون دی، چې دوه یا لـه دوو ډېر ژبني یوونونـه، ویـې او توکي سره ونښلي او یوویی او یا یومانیز جوړښت تري جوړ او ځانله مانا وښندي (۳: ۲۹).

تړنګ د هغـو دوو یـا ډېـرو (خپلواکـو او نـاخپلواکو) ویيونـو او ګړونـو یـو ځای کېده دي چې رغنده توکي يې يو له بله سره پښوييز اړيکی ولـري يا د دوو یا ډېرو خپلواکو او ناخپلواکو ګړونو غونډ دی، چې برخې يې يو لـه بل سره پښوییز اړیکی ولري. د تړنګونو د څېړنې او لوستنې څخه داسې څرګندېږي، چې تړنګونه د مانا او جوړښت له مخې بېلابېل ډولونه لري.

د تړنګ ځانګړنې:

۱ – تړنګ له دوو یا ډېرو خپلواکـو او نـاخپلواکو ګړونـو او ویيونـو څخه جوړېږي.

۲ – په تړنګ کې یوویی د بل تابع ګرځي.

۳ – په تړنګ کې د ویيونو ترمنځ غونډله پوهیز اړیکی ټینګېږي.

۴ – تړنګ تر ویـي پراخ او ترښتي مانا څرګندوي.

۵ – د غونډلې او تړنګ ترمنځ توپیر او بېلوالی اړین دی (۱: ۳۹،۴۱).

د تړنګ ډولونه:

په پښتو کې تړنګونـه لومړی پـه دوو ډلـو وېشـل کېـږي، چې هره ډلـه بیا نورې برخې لري، هغه دوې ډلې دادي:

الف ـ نوموال تړنګونه:

هغـه تړنګونـه دي، چـې د تړنګ آره او بنسـټيزه برخـه يـې نـوم وي او دغـه تړنګونـه پـه غونډلـه کې د ايښي او پـه نوموالـه غونډلـه کې د ايښـوني پـه برخه کې راځي.



نوموال تړنګونه دا لاندې ډولونه لري:

۱ - تولي تړنګونه:

دا هغه تړنګونه دي، چې د یو نوم اړوندتیا بل نوم یا نومځري سره شوې وي. د پښتو ژبې په تولیزو تړنګونو کې یو تولنومی او بل تولنوم راځي.

تولنوم له تولنومي څخه وروسته راځي. جوړښت یې په دې ډول دی:

تولوییکی (د) + نوم + نوم، د + تولنومی + تولنوم: د کابل ښار

تول تړنګ د مانا له مخې د لاندې موخو لپاره راځي:

- د تول او تړاو لپاره: د ښوونځي نجونې.
- د ځانګړتیا لپاره: د کندوز ختيکې.
- د ورته والي لپاره: د سترګو تور، د عقل لاس.
- د څرګندتیا لپاره: د ازادۍ ځلی.
- د ظرفیت لپاره: د تیلو بوتل، د اوبو ګیلاس.
- د وړتوب لپاره: د دوستۍ وړ.

۲ - ستاینوم تړنګونه:

دغو تړنګونو ته، چې په عامه توګه ستاینوم تړنګونه وايي، هغه تړنګونه دي، چې د یو نوم یا نومځري د اکر څرګنوالی د ستاینوم له لارې څرګند او وښوول شي، لکه: ښکلی ښار، زیړ ګل....

په پښتو کې ستاینوم تړنګونه داسې جوړېږي:

(ستاینوم + نوم) (نوم + نوم) (نوم + ستاینوم) (نوم + کړول) (نوم + کړ ستاینوم)

(ستاینوم + ستاینوم)

۳ - شمېر تړنګونه:



هغه ترېنګونه دي ، چې له شمېر او نوم يا شمېرنوم او شمېرلي څخه رغېدلي وي. جوړښت يې داسې دی: شمېرنوم + نوم.
په پښتو ژبه کې شمېرنوم له خپل شمېرلي څخه مخکې راځي، لکه: دوه قلمونه، يو کور پينځه خونې.

۴ - کړول ترېنګونه:

هغه ترېنګونه دي، چې د جوړښت بنستې او آر توکي يې کړولونه وي. دا ترېنګونه د بېلابېلو مانااوو د څرګندونې لپاره له ځينو نورو ويېونو (تېنګار، شمېرنوم، نوم سربلونه او وستربلونه) سره يو ځای کېږي او ټول ترېنګ يې د کړول په توګه په غونډله کې کارېږي او په لاندې پنيو بڼو جوړېږي:

الف - کړول + کړول = کړول ترېنګ، لکه: هلته دلته، ښکته پورته، لاندې باندې او نور.

ب - نوم + نوم = کړول ترېنګ، لکه: غرونه غرونه، ځولۍ ځولۍ، کوټې کوټې، دلۍ دلۍ.

ج - ستاينوم + ستاينوم = کړول ترېنګ، لکه: پټ پټ، غټ غټ، نيم نيم ، لوی لوی.

د - شمېرنوم + شمېرنوم = کړول ترېنګ، لکه: پينځه پينځه، يو يو، شل شل.

ه - شمېرنوم + شمېرنوم + نوم = کړول ترېنګ، لکه: يو دوه ورځې، دوه درې قلمونه.

و - ستاينوم + کړول = کړول ترېنګ، لکه: ډېر نږدې، ډېر ژر.

ز - نومځری + نومځری = کړول ترېنګ، لکه: څوك څوك، کوم کوم.

ح - ستاينوم + ستاينوم = کړول ترېنګ، لکه: ډېر ښه، ډېر هوښيار.

۵ - تېنګار ترېنګونه:



په پښتو کې دا ډول ترنګونه له دوه همغږو او همهانیزو وییونو څخه رغېدلي دي. درې ډولونه لري:

۱ – چې یو ویی په ترنګ کې کټ مټ بیا راشي.

۲ – چې یو ویی په لږ بدلون سره بیا راشي. لکه: ډز ډوز، ټك ټوك، درب دروب، سم دم.

۳ – چې په دویم ویي کې دلومړي توري پرځای (م) (پ) (ب) یا (و) راوړل شوي وي لکه: غنم منم، خرپر، پتې متې.

۶ – وییك ترنګونه:

دې ته ځکه وییك ترنګ وایي، چې له وییکو او نومیز مرکز څخه جوړ شوي وي. په دې ترنګونو کې نومیز مرکز، نومځری، ستاینوم یا کوم بل نومیز ترنګ وي. په دې ډول ترنګونو کې وییکي له نوم څخه وروسته او هم د مخه کارېدای شي، لکه: په کور کې، تر کابل پورې او نور.

ب – کړ ترنګونه:

هغه ترنګونه دي، چې ستره مرکزي او آره برخه یې کړونه وي. دغه ډول ترنګونه تر ډېره په غونډله کې د ایښوني برخه جوړوي.

کړ ترنګونه پښوییزه مانا هم څرګندوي او په ځانګړې توګه یوه غونډله هم ګڼل کېدای شي.

په پښتو کې کړ ترنګونه په لاندې ډول جوړېږي:

- نوم + کړنومی = کړ ترنګ، لکه: کتاب لوستل، لیك لیکل، په لار کې درېدل.
- کړنومی + کړ = کړ ترنګ، لکه: غوښتل کوم، رټل کوي او نور.
- کړول + کړ ترنګ = کړ ترنګ، لکه: عادلانه چلند کول.
- نوم + مرستیال کړ = کړ ترنګ، لکه: انسان یم.
- ستاینوم + مرستیال کړ = کړ ترنګ، لکه: جوړ یم.
- کړول + مرستیال کړ = کړ ترنګ، لکه: لرې یم، نږدې یم.



- شمېرنوم + مرستیال کړ = کړ تړنګ، لکه: یوه ده، دوې دي.
- د یم، وم. مرستیال کړونه + کړونه یا کړ ستاینوم = کړ تړنګ، لکه: راغلـــــــــــــــــــــــــــی یـــــــــــــــــــــــــــــم

ګرځېدم، راغلی وم، ګرځېدلی یم .

لنډه دا ، چې په دې برخه کې د پښتو ژبې ډېر کړوال جوړښتونه کړ تړنګونه جوړولای شي. د ټولو بېلګې راخېستل د دې لنډې تنګې لیکنې پــــــــــــــــه اړانــــــــــــــــــه کـــــــــــــــــې نـــــــــــــــــه ځایېږي (۱۲: ۷۴ - ۷۷).

غونډ یا تړنګ د غونډلې د آرو او یا مرستیالو ټوکونو (نومونو، کړونو او ستاینومیزو کړولونو او وییکو) یو سست وییغونډ یا تړنګ دی. داسې چې رغنده توکي یې سره خپلمنځي پښوییز اړیکي پالي او شننوړ دي، خو د غونډلې دننه د یوه یوون یا واحد (Syntagm or Tagmeme) په توګه ناشنوني بلل کیږي او له نورو رغندو یوونو (Components or Constituents) سره یې پښوییز تړاو شتوالی لري. نه دا چې هر رغنده توك یې دغه راز اړیکي پرکار واچوي. په بله ژبه، یو عادي غونډ له تړښتي پلوه یو سست تړنګ بلل کیږي او هغه دا ، چې رغنده ټوکونه (ګړونه، وییونه او وییکي) یې په خپل منځ کې د پښوییز ادلون بدلون منونکي دي. هم د نحوي توکو لکه تولي سربل (د) او داسې نورو توکو د خوندیینې او هم د اوډون او سمون، پېر د اغېزمنني له مخې. هر ګوره، خج،آهنګ او نور بشپړاند " نازنځیري " توکونه یې سره زیاتره یووالی لري او پر هماغه غوره یا وروستي توك یې ټیکاو مومي (۶: ۲۲۳).

په شعري کره کتنو کې دا زیاته دود ده، چې وایي: پلاني شاعر خورا ښه او ښــــــــــــــــــــــــــــــــــــــــــــــــــــــــــــــکلي

(( تړنګونه)) هم کارولي دي. په دغه تړاو استاد اسدالله غضنفر لیکي: په تړنګ کې چې له دوو یاتر دوو له ډېرو وییونو رغېږي، یوه نوې مانا



مومو. تړنګونه پر څلورو ډولونو وېشلای شو: تولي، ستایوال، ورتنیز (تشبیهي)او استعاري تړنګونه. د پښتو پخوانو شاعرانو به تړنګونو ته ډېر پام نه کاوه. په شلمه پېړۍ کې د هنر دې اړخ ته پام وشو.
دلته ((تړنګ)) د وییپوهنې او بیا وییرغاونې(Word formation) په جاج نه، بلکې د غونډله پوهنې(نحوي) په جاج کارول کېږي او له همدې اړخه د ژبپوهنې په نومونه کې نحوي تړنګونه ، په بله وینا ، غونډونه (عبارتونه، فقرې) بلل کېږي. په دې توګه لومړي ډول ته (غونډله پوهیز یا نحوي تړنګ) ویل کېږي او دویم ډول ته (وییز یا لغوي تړنګ). لومړی ډول د دوو یا زیاتوو وییونو او وییکو یوه ټولګه ده، چې په یوه غونډله کې د یوه شننوړ او ونجوړ یوون په توګه یو ټاکلی پښوییز او مانیز چار پرځای کوي، په نورو ټکو، یوه غونډله لومړی پر غونډونو وېشل کېږي، لکه (سپوږمۍ او زمری، د مازیګر پر درېو بجو په ملي بس کې، یوه ستراد‌بي بنډارته، ځي) غونډله. وییز تړنګ بیا له دوو یا زیاتو وییونو او وییکو څخه داسې رغښت مومي، چې نه یواځې شننوړ او ونجوړ نه وي ، بلکې پر دې سربېره یې بېلابېل رغنده توکي له غونډله پوهیز پلوه د یوه یواځیني خج او (پېر: آر، اوښتي) اړوند تابع وي، لکه: پیمخی، سترګوری، تمځی، ژبپوهنه، کتنپلاوی، له اوښکو ډکې سترګې، ژب- ساپوهنه....
په دې لړکې شعري غونډونه یا ((تړنګونه)) هم د نورو غونډونو غوندې تر هرڅه له مخه د اړوندو غونډلو د یوونونو په توګه، د جولیز، غونډله پوهیز جوړښت، چار و مانا له مخې په پام کې نیول کېدای شي او هله بیا له شعري- هنري پلوه ؛ او داچې له آره غونډله پوهیز غونډونه دي، نو اړینه نه ده، چې تل دې رغنده توکي یواځې خپلواك وییونه وي، بلکې لکه له مخه چې ورته نغوته وشوه، ناخپلواك هغه (وییکي: د ، له، په، پر، تر، سره، لاندې باندې، کې، پورې، پسې او...) هم رانغښتای شي او په



دې لړ کې د همدغو څلورګونو ترڅګونو((توالی اضافات)) چې په دوديزو ادبي فنونو کې ويار بلل کېده، اوس يې په ښېګڼو کې شمېرل کېږي. دادی، دلته يې څو بېلګې وړاندې کېږي:

برندې سترګې، لکه: د اسمان ستورې، په سترګو سترګو کې، پر بلې ولاړه نجلۍ، سر پر زنګون، د وختو د اسوېلو تر سيورې لاندې، پر ورېښمين بستر د ناز، د لمر په څنګو کې، د ښېراز باور ګوګل، د ګل او بلبل په ژبه، بادونو لولنګرو، د کرلو پرندو وينو د ګلمينو ګلبڼونه د سپېدو د خزانزمولو سپېدارونو شنه خوبونه.

هرګوره،استاد غضنفر شعري ترڅګونه په څلورو نومېرلو(مشخصو) ډولو تـــــــــــولي، وصـــــــــــفي تشبيهي او استعاري هغو کې رالنډ کړي، چې هغه هم د نوموالوغونډونو يوه برخه رانغاړي.که نه يوائې په نوموالو کې تولي داپېنځه ډوله دي همداسې توصيفي، بدلي، عددي، متممي قيدي... او ورپسې فعلي ډولونه هم همداسې درواخله .

په هره توګه، د ترڅګونو هماغه ساده ډولونه هم ، چې د دوو خپلواکو(ساده يا مشتقو) وييونو تر څنګ له تولي(د) پرته پکې نور وييکې دومره برخه نه اخلي، تر يووستويو وييونو څخه د شعري انځورونو (اېماژونو)، په تولېز جاج، د (( شعريت)) لپاره ښه ترا ليار ه هواروالی شي او د ژبني پوتنسيال د آر له مخې يې زېږون ناپايه (نامحدوده) دی، په بله وينا ، شاعر يې له اړتيا سره سم هرڅومره ډېر رامنځته کولای شي او هېڅکله له تنګسې سره نه مخا مخېږي.

استاد غضنفر هڅه کړې، د جيلاني جلان د شعر دارزونې په ترڅ کې هماغه څلور ډوله رابرسېره کړي:

د مازيګر په ( پړ) زېړ جبين به ګل ګل وکرل شي
دا ځوان ګودر به اوس د نجونو په مذهب غرېږي



دلته زیړ جبین وصفي تړنګ دی. د مازیګر زیړ جبین، استعاري تړنګ دی. ځوان ګودر هم استعاري تړنګ دی. مانا داچې ګودر له انسان سره تشبیه شوی دی. بیا د تشبیه یو اړخ یانې مشبه به (چې دلته انسان دی) حذف شوی او یواځې یوه ځانګړنه یانې ځواني یې یاده شوې ده او د نجونو مذهب تولي تړنګ بولو، ځکه مذهب تولنوم او نجونې تولنومی دی.

متل دی وایي، د شال او شړۍ نه سره کېږي، خو په پکتیا کې شړۍ ښکلی او رنګین لباس دی. جلان وایي:

دې ته سور غرور هم ګونډه ماتی شي، سجدې کوي

دا د پسرلي شړۍ د لمر په (پر) اوږو ښخه ده

دلته سور غرور وصفي تړنګ (غرور) ستایلی او (سور) ستاینوم دی او د لمر اوږې استعاري تړنګ دی. د ښاغلي جلان شاعري له استعاري تړنګونو مالامالہ ده. د ده تړنګونه کابو ټول د ده خپل دي.

ژبپوهان وایي، چې په ځینو ژبو کې تړنګ جوړول اسانه دي، خو په ځینو نورو کې اسانه نه دي.... جلان د نوي انځور د جوړولو لپاره، د مانا رسولو لپاره او بل د تناسب لپاره تړنګونو ته مخه کوي. دی وایي:

زموږ د کلي له اسمانه هر چا کړې ولجه

چا تربنه لپو کې سپوږمۍ وړې چا لمر وړی دی

دلته د کلي د اسمان تړنګ په وروستي مسره کې له لمر و سپوږمۍ سره هم د انځور په بشپړولو کې برخه اخلي، هم تناسب زېږوي.

دا خبره چې تړنګ جوړول په پښتو کې د نورو ژبو اوبیا پارسي هومره اسان نه دي، سمه نه ده، ځکه، لکه پر همدې ځېرکې چې رڼا واچول شوه، هره ژبه ((یو ناپایه رغاونیزه وړتیا او پوتنسیال لري))، دا بېله سکالو ده، چې په پښتو او بیا شعر و ادب کې له دغه پټ توانه د نورو او بیا پارسي ژبې هومره کار یا ګټه اخېستل شوې نه ده! (۷: ۲۶۱- ۲۶۴).



د حمیدبابا د ژوند، شاعرۍ اوشاعرانه تړنګونو په اړه د لنډو مالوماتو له وړاندېینې وروسته خپلې اصلي موضوع ته ورځو چې په لاندې ډول ده:



## د حمیدبابا په شعرونو کې شاعرانه تړنګونه

- وړې سترګې:

په پورتني ستاینوم تړنګ کې (وړې) ستاینوم او (سترګې) ستایلی دی. همدارنګــــــــــــــــــــــــــــــــــــــــــــــه د (عشق مې) په تول تړنګ کې (د) تولوییکی (عشق) تولنومی (مې) تولنوم دی. په لاندې بیت کې یې وګورئ:

که مې نه زمويې په ويار د وړو سترګو
مې د عشق په میخانه کې د مجاز را
(۱۰ : ۱)

- د عشق کبر وناز:

په پورتني تول تړنګ کې (د) تولوییکی (عشق) تولنومی او (کبر و ناز) تولنوم دی. په لاندې بیت کې کاربدلی:

چې مې نه وي سرکوزی چاته بې ښکلو



له دولته د عشق هسې کبر و ناز را

(۱۰: ۱)

- د ګړۍ مېلمنه ورا:

په پورتني ترڼګ کې (مېلمنه ورا) ستاینوم ترڼګ دی (مېلمنه) ستاینوم او (ورا) ستاينلی. تول (د ګړۍ ميلمنه ورا) تول ترڼګ دی (د) تولوييکی (ګړۍ) تولنومی او (مېلمنه ورا) تولنوم دی.

بېهوده يې زړه ترې په ډنګ ډنګ پورې

د ګړۍ ميلمنه ورا ده دا دنيا

(۱۰: ۴)

- د هلکو تماشا:

په پورتني تول ترڼګ کې (د) تولوييکی (هلکو) تولنومی او (تماشا) تولنوم دی.

مناسب نه دي ورتله د لويو خلکو

د هلکو تماشا ده دا دنيا

(۱۰: ۴)

- د عشق لاعلاج رنځ:

په پورتني ترڼګ کې (لاعلاج رنځ) ستاينوم ترڼګ دی (لاعلاج) ستاينوم (رنځ) ستاينلی . همدارنګه تول ترڼګ تولي هم دی (د) تولوييکی (عشق) تولنومی او (لاعلاج رنځ) تولنوم دی. بلخوا، تشبيهي ترڼګ هم دی (عشق) مشبه (لاعلاج رنځ) مشبه به او ګډه ستاينه يې (د درملنې او علاج نشت) دی. د (بې دمه بې جرې منګور) په ستاينوم ترڼګ کې (بې دمه او بې جرې) ستاينومونه او (منګور) ستاينلی دی.

دا د عشق لاعلاج رنځ دی نه پوهېږم

که بې دمه بې جرې منګور دی دا

(۱۰: ۶)

- د عشق سياه رويي:



په پورتني تول ترنګ کې (د) تولوييکی (عشق) تولنومی او (سياه رويي) تولنوم دی. د (کښېدي انځور) په تول ترنګ کې (د) تولوييکی (کښېدي) تولنومی (انځور) تولنوم دی.

هېڅ د عشق په سياه رويۍ مه زهيرېږه
د ژوندون د کښېدي انځــور دی دا
(۱۰: ۶)

- د زړګي ولې / ولۍ:

په پورتني تول ترنګ کې (د) تولوييکی (زړګی) تولنومی (ولې/ ولۍ) تولنوم دی. بيا يو استعاري ترنګ دی (زړګی) قرينه (ولې) مستعارمنه (زړګونه) مستعارله او (اوږدوالی، نری والی، جوړښت او نهيلي) وجه جامع ده. بلخوا (د زړګي ولۍ ربېل کېدل) يوه ګړنه او مانا يې (زحمت او کړاو رسېدل او ځورېدل) ده. د (کرېږ وروځې) ستاينوم ترنګ کې (کرېږ) ستاينوم او (وروځې) ستايلی دی.

چې ربېي مې بې صرفې د زړګي ولې
کرېږ وروځې دي د يار که لور دی دا
(۱۰: ۶)

- د عشق تور:

په پورتني تول ترنګ کې (د) تولوييکی (عشق) تولنومی او (تور) تولنوم دی. د (سرتورېدل) ترنګ يوه ګړنه ده، د نارينه لپاره د (سپکاوي او شرمېدو) او د ښځو لپاره د (کونډتون او بې مېرېه کېدو) په مانا ګړنه، بلکې انګېرنه ده.

که سرتور د عشق په تور شې مه شرمېږه
د جملـه بديـو سـر پېغـور دی دا
(۱۰: ۶)

- د تورو سترګو تور:



په پورتني ترڅنګ کې (توري سترګې) ستاينوم ترڅنګ دی (تور) ستاينوم او (سترګې) ستايلی ، ټول ترڅنګ تولي دی (د) تولوييکی (توري سترګې) تولنومی او (تور) تولنوم دی. بلخوا دا يوه ګړنه او مانا يې (محبوب ، معشوقه ) ده، ورسره بله انډول ګړنه (د زړه سر) ده.

چې په تله د سر و مال راڅخه نه ځي
واقعـي د تـورو سترګو تـور دی دا
(۱۰: ۶)

- د عشق غم:

په پورتني تـول ترڅنګ کې (د) تولـوييکی (عشـق) تولنومی او (غـم) تولنوم دی.

چـې يې زه له خپله غمــه په امان کړم
د عشق غم دی که زما غمخور دی دا
(۱۰: ۶)

- د ښادۍ ستريوښي:

پـه پـورتني تـول ترڅنګ کې (د) تولوييکی(ښـادي) تولنـومی او (ستريوښـي) تولنوم دی.

داچې ژاړي عاشقان ظاهر له غمه
د ښـادۍ ستريوښـي کاندي په دا
(۱۰: ۷)

- بې وياره وصل:

په پورتني ستاينوم ترڅنګ کې(بې وياره) ستاينوم او (وصل) ستايلی دی.

چې ادا کا ورته يار بې وياره وصل
ځان ته وايي عاشقان هالـه ادا
(۱۰: ۷)

- د سمنبر پتون:

په پورتني تـول ترڅنګ کې (د) تولـوييکی (سـمنبر) تولنومی (پـتون) تولنوم



دی، بیا ورتنیز یا تشبیهي ترنګ دی (سمنبر) مشبه به (پتون) مشبه (جوړښت ، پوستوالی او نرموالی) یې ګډه ستاینه ده.

چې شبنم غوندې شبګیر واخېست په سر ما
کېښود سر په پتانه د سمنبر ما
(۱۰: ۸)

- د حاتم د داد نغمه:

په پورتني تول ترنګ کې (د) تولوییکی (حاتم او داد) تولنومی او (نغمه) تولنوم دی. بلخوا ، استعاري ترنګ هم دی (داد) قرینه (نغمه) مستعارمنه او (اوازه، خبرې) مستعارله دی. په همدې بیت کې د (غوږ درنول) ګړنه هم شته چې مانا یې (د چا خبره اورېدل) ده. د (صبر ګوهر) په تول ترنګ کې (د) تولوییکی (صبر) تولنومی او (ګوهر) تولنوم دی. بلخوا، یو استعاري ترنګ هم دی (صبر) لوازم (ګوهر) مستعارمنه او (ثمره) مستعارله دی.

د حاتم د داد نغمه وربانديې ناورم
چې درانه کړه غوږ د صبر په ګوهر ما
(۱۰: ۸)

- د زړه سترګې:

په پورتني تول ترنګ کې (د) تولوییکی (زړه) تولنومی (سترګې) تولنوم دی. بلخوا (د زړه په سترګو کتل) ګړنه او مانا یې (په ځیرتیا او دقت چاته لیدل ) ده. همدارنګه د (زړه سترګې کېدل) بله ګړنه او مانا یې (ډېر ګران او خوږ، زړه ته رانږدې) ده.

د دنیا اهل دول د زړه په سترګو
واړه ولید تر ځان خوار و بتر ما
(۱۰: ۸)



- د ترکو منګولې:

په پورتني تول ترنګ کې (د) تولوییکی (ترکو) تولنومی او (منګولې) تولنوم دی. د (پر زړه ګرځېدل) ترنګ ګړنه او مانا يې (يو څوك يا څه يادېدل، په زړه ورېدل) ده. د (حنا لړمون) شعري ترنګ کې (د) تولوییکی (حنا) تولنومی (لړمون) تولنوم دی.

چې منګولې يې د ترکو په زړه ګرځي
ډوب په وينو کې لړمون شه د حنا
(۱۰: ۹)

- د عشق تيغ:

په پورتني تول ترنګ کې (د) تولوییکی (عشق) تولنومی (تيغ) تولنوم دی، بيا تشبيهي ترنګ دی (عشق) مشبه او (تيغ) مشبه به او ګډ صفت يې (ځورول، په عشق او تيغ خوړلو کې د يو درد احساس) دی. په لاندې بيت کې يې وګورئ :

چې يې زړه د عشق په تيغ سوری سوری شي
لاعلاج کاندي فرياد لکه سُرنا
(۱۰: ۹)

- د خلوت عزيزان:

په پورتني تول ترنګ کې (د) تولوییکی (خلوت) تولنومی او (عزيزان) تولنوم دی. د (ترکو کندی) بل تول ترنګ دی چې (د) تولوییکی (ترکو) تولنومی او (کندی) تولنوم دی. (زړه بدېدل) ترنګ ګړنه او مانا يې(خپه کېدل، خوا بدېدل) ده.

د خلوت له عزيزانو مې زړه بد شه
ځان مې وشماره د ترکو په کندي بيا
(۱۰: ۹)



- د خط اره:

په پورتني تول ترڼک کې (د) تولوییکی (خط) تولنومی او (اره) تولنوم دی. بلخوا تشبیهي ترڼک هم دی (خط) مشبه (اره) مشبه به او ګډه صفت یې (یو ډول اغېز) دی.

وابه نه ږوم نور مخ له ساده رویو
که د خط اره مې کښېږدي په تندي بیا
(۱۰: ۱۰)

- د عشق طاعونی رنځ:

په پورتني تول ترڼک کې (طاعوني رنځ) ستاینوم ترڼک (طاعوني) ستاینوم او (رنځ) ستایلی دی (د) تولوییکی (عشق) تولنومی او (طاعونی رنځ) تولنوم دی. همدارنګه تشبیهي ترڼک هم دی (عشق) له (طاعوني رنځ) سره تشبیه شوی دی (عشق) مشبه (طاعونی رنځ) مشبه به او (سرغړونه، ظلم او ستم) یې ګډه صفت دی.

چې د عشق طاعونی رنځ د حمید مل شو
ژر به ښخ شي په هډیره کې د ماشو
(۱۰: ۱۰)

- د ګوندی زړه:

پورتنی ترڼک تولي دی (د) تولوییکی (ګوندي) تولنومی او (زړه) تولنوم دی.

د ګوندی زړه ترینه صبر کړه ناصحه !
له رندی سره حمید شه سوګندي بیا
(۱۰: ۱۰)

- د زړه سترګې، غوږ:

په پورتني تول ترڼک کې (د) تولوییکی (زړه) تولنومی (سترګې او غوږ) تولنوم دی.

ستور د سر په سترګو غوږ اروي هم ویني



ستړګي غـوړ بـويـه  د زړه بينـا شنــوا
(۱۰: ۱۱)

- د بڼو غشي:

په پورتني تول تړنګ کې (د) تولوييکی (بانه/ بڼو) تولنومی (غشي) تولنوم دی. همدارنګه دا تړنګ تشبيهي هم دی (بانه) مشبه (غشي) مشبه به او ګډه صفت يې (جوړښت او د اغېز يورنګي) ده. په لاندې بيت کې يې وګورئ :

که هر څو د بڼو غشي کاره ولي
يو له نښې د زړه نه درومي خطا
(۱۰: ۱۲)

- توبه په تندي ماتېدل:

د پورتنۍ ګړنې مانا (ټکنی کېدل، پښېماني) ده.

سل توبې کا د زاهد په تندي ماتې
پرې به نږدي په شېخۍ کې څه ويسا
(۱۰:۱۲)

- د محبت ناکردې:

په پورتني تول تړنګ کې (د) تولوييکی (محبت) تولنومی او (ناکردې) تولنوم دی.

ناکـردې د محبت وسږې ورکا
په يوه لاس کې پياله په بل همسا
(۱۰: ۱۳)

- د پرهېز پخته کاري:

پورتنی تړنګ تولي دی (د) تولوييکی (پرهېز) تولنومی او (پخته کاري) تولنوم دی. د (عشق زورمندي) تول تړنګ کې (د) تولوييکی (عشق) تولنومی او (زورمندي) تولنوم دی.



د پرهېز پخته کاري شوه راته خامـه
چې د عشق په زورمندۍ شوم شناسا
(۱۰: ۱۳)

- کاږه بانه:

په پورتني ستاينوم ترنګ کې (کاږه) ستاينوم او (بانه) ستايلی دی.

زه حميد کږو بڼو د ترکو غوښ کړم
په نصيب خطا ګوزار لګي رسا
(۱۰: ۱۳)

- آهو چشمه:

پورتنی ترنګ يو ترښتي ستاينوم دی، په لاندې بيت کې ستايلی هغه دی، چې د هوسۍ په څېر سترګې لري. خو په شعر کې څرګند نه ښکاري. (زړه وړل) ترنګ پکې ګړنه او مانا يې (مينېدل او عاشقېدل) ده.

آهو چشمو وړی زړه که هر څو بولم
نـه منـي لکه آهـو بلـل زمـا
(۱۰: ۱۳)

- ګلرخ:

په پورتني ترنګ کې (ګل) له (رخ) سره تشبيه شوی (ګل) مشبه بـه او (رخ) مشبه دی. ګډ صفت يې (ښکلا) ده.

چې مې خيال شته د ګلرخو په ليمو کې
ګل ته نـه دي منـاسب کـتـل زمـا
(۱۰: ۱۴)

- د ښکليو در:

پـورتنی ترنـګ تـولي دی (د) تولـوييکی (ښـکليو) تولنـومی او (در) تولنـوم دی.

مرم که ژوم سر زما، د ښکليو در دی
نشتـه ځـای بې دغـه دره بل زما
(۱۰: ۱۴)



- د ناکسو تروه ترخه:

په پورتني تول ترړنګ کې (د) تولوییکی (ناکس) تولنومی او (تروه، ترخه) تولنوم دی. ددې ترخنګ (تروه ترخه وړل) ګړنه او مانا یې (سپکې سپورې اورېدل، سرکوزول) ده.

وړې هزار تروه ترخه د ناکسانو
وایه ولې په یوه نمړی حلـوا
(۱۰: ۱۵)

- لاس تر زنې کېدل:

د پـورتنۍ ګړنې مانـا (نهیلـی، هـېښ و حیـران) ده. همدارنګـه د (لاس اوږدول) ګړنې مانا (ګدایي او سوالګري) ده.

چې په سوال اوږدوې لاس چاته حمیده !
ښــه یـې وړی لاس تـر زنـې بې نـوا
(۱۰:۱۶)

- بې ادبه سترګې:

په پورتني ستاینوم ترړنګ کې (بې ادبه) ستاینوم او (سترګې) ستایلی دی. د(وچولی غوټه کول) ګړنې مانا (قهرېدل، غوسه کېدل، تندی ترېوول) ده.

هېڅ ادب مې بې ادبه سترګې ناخلې
که هر څو کا وچولی غوټه ادیب زما
(۱۰: ۱۶)

- د غم لښکر:

په پورتني تول ترړنګ کې(د) تولوییکی (غم) تولنومی (لښکر) تولنوم دی .
په لاندې بیت کې یې وګورئ :

لا مې زیات آه و فریاد د غم لښکر کا
خیژوي مې فوج په سر زما نقیب زما
(۱۰: ۱۶)

- شوخې سترګې:



پورتنی تړنګ ستاینومیز دی (شوخې) ستاینوم او (سترګې) ستایلی دی.

سل ځله که قصد و کا نرګس په شوخو سترګو
هېڅ په هسکو سترګو کتی نه شي روی د ستا
(۱۰: ۱۸)

- هسکې سترګې:

په پورتني ستاینوم تړنګ کې (هسکه/ هسکې) ستاینوم او (سترګې) ستایلی دی.

سل ځله که قصد و کا نرګس په شوخو سترګو
هېڅ په هسکو سترګو کتـی نه شي روی د ستا
(۱۰: ۱۸)

- د هجر غم:

پورتنی تړنګ تولي دی (د) تولوییکی (هجر) تولنومی او (غم) تولنوم دی.

غم د هجـر کړم په وصل کې نابناده
په شربت کې خاورې مه شه ګول د چا
(۱۰: ۲۰)

- د مینې ډول:

په پورتني تول تړنګ کې (د) تولوییکی (مینه) تولنومی او (ډول) تولنوم دی.

له وهلو به یې شرم څوك په څه کا
چې په غاړه شي د مینې ډول د چا
(۱۰: ۲۰)

- سرې شونډې:

پورتنی تړنګ ستاینومیز دی(سرې) ستاینوم او (شونډې) ستایلی دی.

دغه واړه ستا دسرو شونډو اثر دی
چې مونده شي د یمن تاثیـر له مـا
(۱۰: ۲۱)

- د وفا رسم و رواج:



په پورتني تول ترڼګ کې (د) تولوييکى (وفا) تولنومى او (رسم و رواج) تولنوم دى.

څو ترې زه رسم رواج د وفا غواړم
هومره لا راسره کړي جور و جفا
(۱۰: ۲۱)

- سپين لېمه:

په پورتني ستاينوميز ترڼګ کې (سپين) ستاينوم او (لېمه) ستايلى دى. د دې ترڅنګ د (لېمه سپينېدل) ګړنې مانا (ډېره ژړا) ده. همدارنګه (توره بلا) ستاينوميز ترڼګ چې (توره) ستاينوم او (بلا) ستايلى دى. همداسې د (توره بلا پسې کول) ګړنې مانا (څوك بې ارزښته ګڼل او بې پروايي) ده.

ما په يار پسې لېمه په ژړا سپين کړه
يار په ما پسې کوي توره بلا
(۱۰: ۲۲)

- د قامت خيال:

پورتنى ترڼګ تولي دى (د) تولوييکى (قامت) تولنومى او (خيال) تولنوم دى.

هسې زه ستا د قامت په خيال تکيه کړم
هر نفس لکه موسى کړه په عصا
(۱۰: ۲۲)

- د عشق رنځ:

پورتنى ترڼګ تولي دى(د) تولوييکى (عشق) تولنومى (رنځ) تولنوم دى، بيا تشبيهي ترڼګ دى (عشق) مشبه او (رنځ) مشبه به، ګډ صفت يې (ځپل، ځورول او رنځول) دى. په لاندې بيت کې يې وګورئ :

نه سرى ورځني مري نه ترې رغېږي
خداى دې څوك د عشق په رنځ مبتلا نه کا
(۱۰: ۲۳)



- د هجر اندېښنه:

په پورتني تول ترنګ کې (د) تولوييکی (هجر) تولنومی او (اندېښنه)تولنوم دی. د (خوا لـه کمره لګېدل) ګړنې مانا (ځورېدل او کړېدل) ده.

اندېښنه چې دې د هجر را په خوا شي
په هيبت مې لـه کمره لګي خوا
(۱۰: ۲۳)

- د خوبانو د خندا لايق:

پورتنی ترنګ تولي دی (د) تولوييکی (خوبان او خندا) تولنومی او (لايق) تولنوم دی. همدارنګه د (له عقله پلی) ګړنې مانا (ډېربې عقل) ده. بلخوا، يو وييکترنګ (ارتباطي ترکيب) هم دی، ځکه لـه آداتو څخه (لـه) پکې راغلی دی.

د خوبانو دخندا لايق به نه شي
څو يې عشق له عقله پلی جولانه کا
(۱۰: ۲۳)

- د حسن ازبکي:

پورتنی ترنګ تولي دی (د) تولوييکی (حسن) تولنومی او (ازبکي) تولنوم دی. د (صبر خونه تالاکېدل) ترنګ ګړنه او مانا يې (د بې صبرۍ پای او انتها، نه صبرېدنه، بې صبري) ده. د (صبر خونه) بل شعري تول ترنګ دی (د) تولوييکی (صبر) تولنومی او (خونه) تولنوم دی.

نه منمه ازبکي د هغه حسن
څو زما د صبر خونه تالانه کا
(۱۰: ۲۳)

- د خط توره:

پورتنی ترنګ تولي دی (د) تولنومی (خط) تولنومی (توره) تولنوم دی، بيا تشبيهي ترنګ دی (خط) مشبه او (توره) مشبه به، ګډ صفت يې



(اغېز او پرېکول) دی. په لاندې بیت کې یې وګورئ :

شا به نه کا مفت خواره وښکلي مخ ته
څو یې سر ته د خط توره تر ملا نه کا

(۱۰: ۲۴)

- د صبر قلا:

په پورتني شعري تول ترېنګ کې (د) تولوییکی (صبر) تولنومی او (قلا) تولنوم دی.

محبت اسماني تندر دی ناصحه !
هېڅ فایده ورته د صبر قلا نه کا

(۱۰: ۲۴)

- د آه اور:

په پورتني تول ترېنګ کې (د) تولوییکی (آه) تولنومی (اور) تولنوم دی، بیا تشبیهي ترېنګ دی (آه) مشبه او (اور) مشبه به ، ګډ صفت یې (ګرموالی) دی. په لاندې بیت کې یې وګورئ :

که هر څو یې لوغړن د آه په اور کړي
څوك به خوی له (د) کج روی د فلك نور کا

(۱۰: ۲۴)

- د شبنم ژړا:

په پورتني تول ترېنګ کې (د) تولوییکی (شبنم) تولنومی (ژړا) تولنوم دی، همداسې یو استعاري ترېنګ هم دی (ژړا) قرینه (شبنم) مستعارمنه او (څاڅکی) مستعارله (نرمښت او رنګ او نور جوړښت) یې د جامع وجه ده. په لاندې بیت کې یې وګورئ:

یو د بل په درد و غم خوښ و خرم کا
د شبنم په ژړا ګل په خندا خور کا

(۱۰: ۲۴)

- د ټکي شنه نمري:



په پورتني ترنګ کې (شنه نمري) ستاينوم ترنګ دی (شين/ شنه) ستاينوم (نمري) ستايلی دی. همداسې تول ترنګ هم دی (د) تولوييکی (ټګۍ) تولنومی او(شنه نمري) تولنوم دی. د دې ترخنګ (د ټګۍ شنه نمري اغوستل) يوه ګړنه او مانا يې (مکر حيله، دروه، درغلنه) ده. بله ګړنه (برګ و بور کېدل) ده، مانا يې (رعب او هيبت غورځول) ده. د دې ترخنګ (خړکېدل) بله ګړنه او مانا يې (ګرمېدل او ملامتي) ده.

کله واغوندي شنه نمري د ټګۍ
کله خړ شي ځان له قهره برګ و بور کا
(۱۰: ۲۴)

- د مظلوم اوښې:

پورتنی ترنګ تولي دی (د) تولوييکی (مظلوم) تولنومی او (اوښې)تولنوم دی.

چې يې ختې د مظلوم په اوښو کېږي
دغه کور به زمانه د ظالم ګور کا
(۱۰: ۲۵)

- زړه تورول:

پورتنی ترنګ يوه ګړنه او مانا يې (اړيکی پريکول، بدول ، زړه مړېدل) ده. همدارنګه

(مخ بل لور ته کول / مخ اړول) بله ګړنه ده چې مانا يې (بې وفايي، ناپامي، بې پروايي) ده.

يو دې زړه زما له بله لوريه تور کا
بيا دې مخ زما له لوري په بل لور کا
(۱۰: ۲۶)

- سر تورول:

پورتنی ترنګ يوه ګړنه او مانا يې (سوال او زاري کول ) ده.

خلاص دې نه کړم د رقيب له سر درده



که هـزار ځله مې سر درته سرتـور کا

(۱۰: ۲۶)

- هجر منګور:

پورتنی تړنګ تشبیهي دی (هجـر) مشـبه او (منګـور) مشـبه بـه، ګډ صفت يې (اغېز، رنځول او ځورول) دی. د (پر زړه منګور لګيا کـول) تړنـګ ګړنـه او مانا يې(ځورول او کړول)ده.

څه به رنګ زمـا په ځـای وي سمنبره

چې لګيا مې دې په زړه هجر منګور کا

(۱۰: ۲۶)

- سترګې سوځېدل:

پـورتنی تړنـګ يـوه ګړنـه او مانـا يـې (ډېره کـول، شـرمېدل ، ډارېـدل او وېرېدل) ده.

چې پرې سوې را څخه سترګې د غمازو

غـم دې زوم زمـا لـه دلـه هغه زور کا

(۱۰: ۲۶)

- د ښه مخ همای:

په پـورتني تړنګ کې د (ښـه مخ) تړنـګ سـتاينوميز دی (ښـه) سـتاينوم او (مخ) ستايلی دی. بلخوا، دا تړنګ تولي هم دی (د) تولـوييکی (ښـه مـخ) تولنـومی او (همـای) تولنـوم دی. همدارنګـه يـو اسـتعاري تړنـګ هـم دی (همای) مستعارمنه (اغېز او ښکلا) مستعارله او (ښه مخ) قرينه ده.

د ښه مخ همـای هالـه کا په چا سيوری

چې شهپر د خط و خال راوړي پرواز کا

(۱۰: ۲۷)

- د ترکو جادو:

په پورتني تول تړنګ کې (د) تولوييکی (ترکو) تولنـومی او (جـادو) تولنـوم دی.



چې د ترکو په جادو ړانده کاږه دي
بېهوده ورته ناصح د پند اواز کا
(۱۰: ۲۷)

- ترپښو لاندې ښاخونه پرې کول:

پورتنی ترړنګ یوه ګړنه او مانا یې (ځان زیانمنول، خپلې پښې وهل) ده.
بله ګړنه (په زړه نهالول) ده چې مانا یې (غوښتل، منل، لورول) ده.

پرېکوي تر خپلو پښو لاندې ښاخونه
چې بدي د عزیزانو په زړه نهال کا
(۱۰: ۲۸)

- د برېښنا په رڼا ستن پېیل:

پورتنی ترړنګ یوه ګړنه او مانا یې ( ناشونی کار کول، ستونزمن کار کول ) ده.

نا لایق چې لایقت په نسب غواړي
د برېښنا په رڼا ستن پېیي جنجال کا
(۱۰: ۲۹)

- د مهر مخ:

په پورتني شعري تول ترړنګ کې(د) تولوییکی (مهر) تولنومی (مخ)تولنوم دی. بل تول ترړنګ د (مینې رنځ) دی. (د) تولوییکی (مینه) تولنومی (رنځ) تولنوم دی. بلخوا، تشبیهي ترړنګ هم دی (مینه) مشبه او (رنځ) مشبه به، ګډ صفت یې(خوږوالی، ښکلا) دی. په لاندې بیت کې یې وګورئ :

بیانګار د مهر مخ راته ښکاره کا
بیا یې رنځ زما د مینې دوباره کا
(۱۰: ۳۰)

- د سکون اوم تار:

په پورتني ترړنګ کې (اوم تار) ستاینوم ترړنګ دی (اوم)ستاینوم



(تار)ستایلی دی.همدارنګه (د) تولوییکی (سکون) تولنومی (اوم تار) تولنوم دی. د دې ترڅنګ (په اوم تار ګنډل/ په خام تار تړل) تړنګونه ګڼرنې دي چې مانا یې (بې پایلې چار، ناسم حالت کې پرېښوول) ده.

چې ګنډلی د سکون په اومه تار وو
هغه زخم مې یې بیا پاره پاره کا
(۱۰: ۳۰)

- خونخوار خیال:

په پورتني ستاینوم تړنګ کې (خونخوار) ستاینوم (خیال) ستایلی دی. د دې ترڅنګ

(زړه د مینې فواره کول) ګڼرنه او مانا یې (ډېره مینه ورکول، په مینه کې ډېر اخلاص) ده. د (مینې فواره) هم شعري تول تړنګ دی چې (د) تولوییکی (مینه/ مینې) تولنومی او (فواره) تولنوم دی.

خونخوار خیال د یار رانغی تماشو له
که مې زړه ورته د مینې فواره کا
(۱۰: ۳۱)

- لاس پر سر راکښل:

پورتنی تړنګ یوه ګڼرنه او مانا یې (مهرباني، زړه سوی، پالنه) ده.

هېڅ مې یار د مهر لاس په سر رانه کېښ
که هر څو مې ځان یتیم او بېچاره کا
(۱۰: ۳۱)

- ګلګونې جامې:

په پورتني تشبیهي تړنګ کې (ګل) مشبه به (ګون) د تشبیه توری او (جامې) مشبه دی. همداسې (ګلګونې جامې اغوستل) ګڼرنه او مانا یې (پسولل، ښکلنه او سینګارونه) ده.

چې ګلګونې جامې اغوندي سواري کا
خدای زده بیا د چا د قتل تیاري کا



(۱۰: ۳۲)

- د سرو شونډو رموز:

پورتنی ترڼګ تولي دی (د) تولوييکی (سرې شونډې) تولنومی او (رموز) تولنوم دی. د ټول ترڼګ په منځ کې بل ستاينوم ترڼګ (سرې شونډې) دی. (سرې) ستاينوم او (شونډې) ستايلی دی.

په رموز يې د سرو شونډو نه پوهېږم
چې د خلکو غمخواري کا خونخواري کا
(۱۰: ۳۲)

- د اوښو دُر:

په پورتني تول ترڼګ کې (د) تولوييکی(اوښې) تولنومی (دُر) تولنوم دی، بيا تشبيهي ترڼګ هم دی (اوښې) مشبه او(دُر) مشبه به، ګډه صفت يې (جوړښت او روڼوالی) دی. په لاندې بيت کې يې وګورئ :

تويوي په لپو لپو دُر د اوښو
چې مې سترګې د ديدن خريداري کا
(۱۰: ۳۲)

- بې لاسه لستوڼی:

په پورتني ستاينوم ترڼګ کې (بې لاسه) ستاينوم (لستوڼی) ستايلی دی.

لکه بې لاسه لستوڼی څه کړای نه شي
هسې بې فضله بنده دی مضطرب
(۱۰: ۳۵)

- مزرۍ سترګې:

په پورتني ستاينوم ترڼګ کې (مزرۍ) ستاينوم (سترګې) ستايلی دی. همداسې (خوب حرامول) ګړنه او مانا يې (نارامول) ده.

ستا مزرو سترګو حرام کا
د حرم په هوسو خواب
(۱۰: ۴۱)



- د سترګو قصاب:

په پورتني تول ترړنګ کې (د) تولوييکی (سترګې/ سترګو) تولنومی (قصاب) تولنوم دی، بيا تشبيهي ترړنګ دی (سترګې) مشبه او(قصاب) مشبه به، ګډ صفت يې (ځور، رنځ، ظلم او ستم) دی. په لاندې بيت کې يې وګورئ :

کشتني غوندې ولاړ يم
ستا د سترګو په قصاب
(۱۰: ۴۱)

- د بڼو سيخ:

پورتنی ترړنګ تولي دی (د) تولوييکی (بانه) تولنومی (سيخ) تولنوم دی، بيا تشبيهي ترړنګ دی (بانه) مشبه او(سيخ) مشبه به،ګډ صفت يې (جوړښت او اغيز) دی. په لاندې بيت کې يې وګورئ :

زړ په زړ به مې کا غوښې
د بڼو په سيخ کباب
(۱۰: ۴۱)



- د حسن درياب:

په پورتني شعري تول ترړنګ کې (د) تولوييکی (حسن) تولنومی (درياب) تولنوم دی. په لاندې بيت کې يې وګورئ :

ستا د حسن و درياب ته
غير حسن دی حباب
(۱۰: ۴۲)

- د هجر عذاب:

پورتنی ترړنګ تولي دی (د) تولنومی (هجر) تولنومی (عذاب) تولنوم دی، بيا تشبيهي ترړنګ دی (هجر) مشبه او (عذاب) مشبه به ، ګډ صفت يې (کړاو او رنځ) دی. په لاندې بيت کې يې وګورئ :

خدای دې نه سپځي حميده !



## څوك د هجر په عذاب

(۱۰: ۴۲)

- د صبر خانمان:

په پورتني تول ترړنګ کې (د) تولوييکی (صبر) تولنومی (خانمان) تولنوم دی، بيا تشبيهي ترړنګ دی (صبر) مشبه او (خانمان) مشبه به ، ګډ صفت يې (جوړښت) دی. په لاندې بيت کې يې وګورئ :

څکه ما څخه آرام و قرار ورك شه
چې مې اوښو کړه د صبر خانمان ډوب

(۱۰: ۴۲)

- د حيا د بحر دُر:

په پورتني تول ترړنګ کې (د) تولوييکی (حيا او بحر) تولنومی او (دُر) تولنوم دی. د (صبرجهازونه) بل تول ترړنګ دی (د) تولوييکی (صبر) تولنومی او (جهازونه) تولنوم دی .

د حيا د بحر دُر يې مونده نه شي
که د صبر جهازونه کړم چندان ډوب

(۱۰: ۴۳)

- د اوښو توپان:

په پورتني تول ترړنګ کې (د) تولوييکی (اوښې) تولنومی او (توپان) تولنوم دی.

هېڅ پروا نه کا په غم د هر ژړانده
که جهان کړم زه د اوښو په توپان ډوب

(۱۰: ۴۳)

- د زړه کبوتر:

په پورتني تول ترړنګ کې (د) تولوييکی (زړه) تولنومی او (کبوتر) تولنوم دی.

څه ښادي به کبوتر زما د زړه کا





چې کښېوتی په لاس باز يې د رقيب
(۱۰: ۴۴)

- داغلی زړه:

په پورتني ستاينوم ترنګ کې (داغلی) ستاينوم دی (زړه) ستايلی دی.

د داغلي زړه له آهه شم څه شان چپ
د چمــن په ګلو نه وي بلبــلان چپ
(۱۰: ۴۵)

- د مراد ډيوه:

په پورتني تول ترنګ کې (د) تولـوييکی (مراد) تولنومی او (ډيوه) تولنوم دی. همداسې (پـه اوبـو ډيـوه بلېـدل) ترنـګ ګړنـه او مانـا يـې (بختورېده، طالعمني) ده.

په اوبــو بـه دې ډيـوه شـي د مراد بلـه
که صدف غوندې په صبر کړې دهان چپ
(۱۰: ۴۵)

- د زړه قبله:

پـه پـورتني تـول ترنـګ کـې (د) تولـوييکی (زړه) تولنـومی او (قبلـه) تولنـوم دی. بلخـوا، يـو اسـتعاري ترنـګ هـم دی (زړه) قرينـه (قبلـه) مسـتعارمنه (غوښتنه او هيلې) مستعارله دی.

خدای قبله زما د زړه که ذات د ښکليو
که بد ذات په دا باله شم که نيك ذات
(۱۰: ۴۶)

- مړاوې سترګې:

پـه دې ترنـګ کې(مړاوې) سـتاينوم (سـترګې) سـتايلی دی. ددې ترڅنـګ (سـترګې مړاوېـدل) ترنـګ ګړنـه ده، مانـا يـې (د سـترګو اغېـز ښـندې، شرمېدل، حيا کول) ده.

بې د يار له مړاوو سترګو چې کج ګوري



ګڼه نه کا رنځوران چاته جواب سخت

(۱۰: ۴۷)

- خونخوارې سترګې:

په پورتني ترکیب کې (خونخوارې) ستاینوم (سترګې) ستایلی دی. د (سترګو خونخوارېدل) ترکیب ګڼه او مانا یې (د سترګو اغېز ښندې، چاته د کړاو او ځور رسول) ده.

له خونخوارو سترګو څه شفقت غواړې

مقرر چې وي په زړه اهل قصاب سخت

(۱۰: ۴۷)

- د غم سخرې غوټې:

په پورتني تول ترکیب کې(د) تولوییکی (غم) تولنومی او(سخرې غوټې) تولنوم دی. د تول ترکیب په منځ کې بل ستاینوم ترکیب (سخرې غوټې) دی(سخرې) ستاینوم او (غوټې) ستایلی دی.

سخرې غوټې مې د غم دې زړه ته پروتې

کشکې خدای که راپیدا ګره کشای دوست

(۱۰: ۴۸)

- شوخ کتل:

په پورتني ترکیب کې (شوخ) کړول (کتل) کړولی دی. د (په غتهو سترګو رندېدل) ترکیب ګڼه او مانا یې (په لوی لاس ځان یا خپله ورتیا نفی کول) ده.

یار دې ویار زما د شوخو کتو نه کا

زه په غتهو سترګو ړوند یم لکه بوت

(۱۰: ۴۹)

- غوړ کول:

پورتنی ترکیب یوه ګڼه او مانا یې (اوربدل، غوږ نیول، غوږ درنول) ده.

ښکلې نه درنوې غوږ په نورو دُرو



چې په غوږ کاندي حمیده ستا یاقوت
(۱۰: ۴۹)

- د زړه تابنده نمر:

په پورتني تول ترړنګ کې (د) تولوییکی (زړه) تولنومی او (تابنده نمر) تولنوم دی. د تول ترړنګ په منځ کې بل ترړنګ (تابنده نمر) ستاینومیز دی (تابنده) ستاینوم او (نمر) ستایلی دی.

چې ښکاره زما د زړه تابنـده نمر شه
د سپوږمۍ له لاسه هلته مشال پرېووت
(۱۰: ۵۰)

- د هلال مات کچکول:

په پورتني تول ترړنګ کې (د) تولوییکی (هلال) تولنومی او (مات کچکول) تولنوم دی. د تول ترړنګ په منځ کې بل ستاینوم ترړنګ (مات کچکول) دی (مات)ستاینوم او(کچکول) ستایلی دی. بلخوا، یو تشبیهي ترړنګ هم دی (هلال) مشبه به(مات کچکول) مشبه او (جوړښت) یې ګډ صفت دی. د (روټۍ مورګه) تول ترړنګ کې (د) تولوییکی (روټۍ) تولنومی او (مورګه) تولنوم دی.

شوم فلك د روټۍ مورګه هالـه ورکړه
چې له لاسه مات کچکول د هلال پرېووت
(۱۰: ۵۰)

- نمرمخی:

پورتنی ترړنګ له دوو توکو (نمر + مخ ) څخه رغېدلی، یو ترلی ستاینوم دی. بلخوا (نمر) مشبه به (مخ) مشبه او(ښکلا) یې ګډ صفت دی.

دا مې پرېوته پېښنه د زړه لـه داغـه
که د لاس نه د نمرمخي مشال پرېووت
(۱۰: ۵۰)

- د میني زخم:



په پورتني تول ترڼګ کې (د) تولوييکی (مينه) تولنومی او (زخم) تولنوم دی.

د اشنا د مينې زخم په عذاب کړم
چې ترې نه ووځي خوناب د شکايت
(۱۰: ۵۱)

- د تن کور:

په پورتني تول ترڼګ کې (د) تولوييکی (تن) تولنومی او (کور) تولنوم دی. همدارنګه يو تشبيهي ترڼګ هم دی (تن) مشبه (کور) مشبه به او ګډه صفت يې (فزيکي جوړښت) دی.

د تن کور به مې لرغون وو مينې سوی
که مې نه راتلی ژړا په حمايت
(۱۰: ۵۱)

- سر کوزول:

پورتنی ترڼګ يوه ګړنه او مانا يې (منل، تسليمېدل، سرټيټول) ده.

سر زما سرکوزي نه مني د تاج
ګڼه تاج زما و سر ته دی محتاج
(۱۰: ۵۳)

- د عشق طفل:

په پورتني تول ترڼګ کې (د) تولوييکی(عشق) تولنومی او (طفل) تولنوم دی. همدارنګه يو تشبيهي ترڼګ هم دی (عشق) مشبه (طفل) مشبه به او ګډه صفت يې (نا لېوې او غيرعادي کړنې ) دی.

که د عشق طفل څه لږه که خوله پټه
اپلاتون څخه کا سم سيده تقرير کج
(۱۰: ۵۴)

- د زلفينو مار:

په پورتني تول ترڼګ کې(د) تولوييکی (زلفين) تولنومی او (مار) تولنوم



دی. همدارنګه یو تشبیهي ترکیب هم دی (زلفین) مشبه (مار) مشبه به او ګډه صفت یې (جوړښت) دی. د (عشق دم) په شعري تول ترکیب کې (د) تولوییکی (عشق) تولنومی او (دم) تولنوم دی.

یوه ورځ به خوړ حمید مار د زلفینو
اوس په دم د عشق پاړو شه زما روح
(۱۰: ۵۷)

- د مهر لاس:

په پورتني ترکیب کې (د) تولوییکی(مهر) تولنومی او (لاس) تولنوم دی. بلخوا، یو استعاري ترکیب هم دی (مهر) مستعارمنه (لورېینه، مهرباني) مستعارله (لاس) قرینه او (حب یا مینه) وجه جامع ده.

په خدمت به دې جهان د وړاندې درومي
که د مهر لاس کړې وړاندې لکه صبح
(۱۰: ۵۷)

- سپین ویل:

پورتنی ترکیب ګړنه او مانا یې (رښتیا ویل، پاك ویل، غوځ ګړېدل) ده.

سپین ویل کوه د حق عبدالحمیده !
کـه په ژبه اوېزاندې، لـکـه صبح
(۱۰: ۵۷)

- د حیات اوبه:

په پورتني شعري تول ترکیب کې (د) تولوییکی(حیات) تولنومی او (اوبه) تولنوم دی.

څو اوبه دې د حیات نوشلې نه دي
دا دې واړه نادانـي ده وهې جځ
(۱۰: ۵۸)

- د نفس سپی:

په پورتني ترکیب کې (د) تولوییکی (نفس) تولنومی او (سپی) تولنوم دی.



بلخوا، تشبیهي تړنګ هم دی (نفس) مشبه (سپی) مشبه به او (بې پروايي، ناروا کول) يې ګډه ستاينه ده.

که منډې درسره خوله په هر طعام کې
د نفس سپی دې مردار خوره نه که چخ
(۱۰: ۵۸)

- د ګېډې ځاه:

په پورتني تول تړنګ کې(د) تولوییکی (ګېډه) تولنومی او (ځاه) تولنوم دی. همدارنګه یو تشبیهي تړنګ هم دی. (ګېډه) مشبه (ځاه) مشبه به او ګډ صفت يې (جوړښت) دی.

هسې پرېوتې نسکور د ګېډې ځاه ته
چې دې نه دی یاد په زړه چاه د زنخ
(۱۰: ۵۸)

- د اوښو اوبه:

په پورتني تول تړنګ کې(د) تولوییکی (اوښې) تولنومی او (اوبه) تولنوم دی. همدارنګه تشبیهي تړنګ هم دی (اوښې) مشبه (اوبه) مشبه به او (جوړښت) يې ګډ وصف دی.

تل د اوښو په اوبو کې لره تر مخ
په دغو اوبو کې لید شي د دلبر مخ
(۱۰: ۵۸)

- د مخ ډیوه:

په پورتني تول تړنګ کې (د) تولوییکی (مخ) تولنومی او(ډیوه) تولنوم دی. بلخوا، یو تشبیهي تړنګ هم دی (مخ) مشبه (ډیوه) مشبه به او ګډ صفت يې (جوړښت او ښکلا) ده.

- مخ سورکول :

دا یوه ګړنه او مانا يې (وهل ډبول) ده.

د یوسف د مخ ډیوه شوه هاله بله



چې يې سور کړ په ځېږو برادر مخ
(۱۰: ۵۸)

- د نمر مخ:

په پورتني تول ترڼګ کې (د) تولوييکی (نمر) تولنومی او (مخ) تولنوم دی. همدارنګه يو تشبيهي ترڼګ هم دی (نمر) مشبه به (مخ) مشبه او ګډه صفت يې (ځلا، ښکلا، نور) دی.

له مېږي د سيوري ونه شا په شا وي
څو يې نه کا مخامخ سره د نمر مخ
(۱۰: ۵۹)

- د ځيګر مخ:

په پورتني شعري تول ترڼګ کې (د) تولوييکی (ځيګر) تولنومی او (مخ) تولنوم دی.

و هر چاته به سرخ رويه لکه ګل شي
که په وينو سره وينځي د ځيګر مخ
(۱۰: ۵۹)

- د صبر کوثر:

په پورتني تول ترڼګ کې (د) تولوييکی (صبر) تولنومی او (کوثر) تولنوم دی. بلخوا، يو تشبيهي ترڼګ هم دی (صبر) مشبه (کوثر) مشبه به او ګډه صفت يې (ګرانښت او ارزښت) دی.

سياه رويي به دې د طمعې لاړه نه شي
څو پرېنوينځې د صبر په کوثر مخ
(۱۰: ۵۹)

- د محنت تناکې:

په پورتني تول ترڼګ کې (د) تولوييکی (محنت) تولنومی او (تناکې) تولنوم دی.

چې تناکې د محنت لري په لاس کې



هغه نه ګوري په ځله د ګوهر مخ
(۱۰: ۵۹)

- شوخې سترګې:

په پورتني شعري ستاینوم ترړنګ کې (شوخ) ستاینوم (سترګې) ستایلی دی. دارنګه (کوز کتل / ګورل) ګړنه او مانا یې (شرم، حیا او حجب) ده.

شوخې سترګې نرګس کوز ګوري له شرمه
چې د باغ په لوري واړوي چشمان شوخ
(۱۰: ۶۰)

- د مخ آیینه:

په پورتني تول ترړنګ کې (د) تولوییکی (مخ) تولنومی او (آیینه) تولنوم دی. همدارنګه یو تشبیهي ترړنګ هم دی (مخ) مشبه (آیینه) مشبه به او (روښوالی، سپینوالی، ښکلا) یې ګډ صفت دی.

آیینه یې د مخ هسې پر حیا ده
چې نفس یې د نسیم لګي په ځان شوخ
(۱۰: ۶۰)

- د نسیم وږمه:

په پورتني تول ترړنګ کې (د) تولوییکی (نسیم) تولنومی او (وږمه) تولنوم دی.

چې وږمه یې د نسیم په رخسار داغ شي
د بوسې په وقت ور وړای نه شم لبان شوخ
(۱۰: ۶۰)

- د تورو زلفو کمند:

پورتنی ترړنګ تولي دی (د) تولوییکی او (توري زلفې) تولنومی (کمند) تولنوم دی. بل ستاینوم ترړنګ (توري زلفې) دی (توري) ستاینوم او (زلفې) ستایلی دی. همدارنګه، یو تشبیهي ترړنګ هم دی (توري زلفې) مشبه (کمند) مشبه به (جوړښت او اغېز) یې ګډ صفت دی.



چې ور واچوي کمند د تورو زلفو
د بازار په ګډېده کا آهوان شوخ
(۱۰: ۶۰)

- ورځ اوښتل:

پورتنی تړنګ ګړنه او مانا یې (بدبختي، بدمرغېدل ، بدمرغي) ده.

مــه اړوه مــخ دلــبــره، اوړي زمـا ورځ
مخ کړه چې مې شپه د درد و غم شي رڼا ورځ
(۱۰: ۶۱)

- د زانې کټوری / له زانو کټوری غوښتل:

پورتنی تړنګ ګړنه او مانا یې (ناشونتوب ، نه پوره کېدونکې هیله) ده. دا ګړنه یوه انګېرنه هم ده.

عهد یې د زانې کټوری دی مونده نه شي
تش په توره خلق غورځوي په رڼا ورځ
(۱۰: ۶۱)

- د اشنایۍ پت:

په پورتني تول تړنګ کې (د) تولوییکی (اشنایي) تولنومی او (پت) تولنوم دی.

چې ساتلی نه شي پت د اشنایۍ
آشنایي ده د دنیـا د اشنا هېڅ
(۱۰: ۶۲)

- د زړه کور:

په پورتني تول تړنګ کې (د) تولوییکی (زړه) تولنومی او (کور) تولنوم دی. بلخوا تشبیهي تړنګ هم دی (زړه) مشبه (کور) مشبه به او ګډه ستاینه یې (جوړښت) دی. د (اوښو سېلاب) په شعري تول تړنګ کې (د) تولوییکی (اوښو) تولنومی او (سېلاب) تولنوم دی. همدارنګه، یاد تړنګ



تشبیهي هم دی (اوښې) مشبه (سېلاب) مشبه به او (جوړښت) یې ګډه ستاینه دی.

د سکون د متاع ځای مې پکې نه شي
د زړه کور مې کړ سیلاب د اوښو ډنډ
(۱۰: ۶۶)

- د وصال چشمه:

په پورتني تول ترنګ کې (د) تولوییکی (وصال) تولنومی او (چشمه) تولنوم دی. (سینه سول) ګړنه او مانا یې (سوځېدل، ځورول، کړول) ده. بل ترنګ (د فراق سینه) ده. په دې تول ترنګ کې (د) تولوییکی (فراق) تولنومی او (سینه) تولنوم دی.

لا به کله د وصال په چشمه پېښ شم
چې سینه د فراق سوې کړم په ټنډ
(۱۰: ۶۶)

- د تور خط لیکه:

په پورتني تول ترنګ کې(تور خط) ستاینوم ترنګ دی (تور) ستاینوم (خط) ستایلی دی. همدارنګه (د) تولوییکی (تورخط) تولنومی (لیکه) تولنوم دی. د (سترګو توروسپین ګډېدل) ترنګ ګړنه او مانا یې (وارخطا کېدل، هك پك کېدل) ده.

د تور خط لیکه یې ګډه په سپین مخ شوه
تور و سپین زما د سترګو شو په دا ګډ
(۱۰: ۶۷)

- د وصل خیال:

په پورتني تول ترنګ کې (د) تولوییکی(وصل) تولنومی او (خیال) تولنوم دی.

بېلتانه د وصل خیال را څخه خور کړ



په رمه باندې لېوه شه د موسی ګله
(۱۰: ۶۷)

- د ښکليو پټکې:

په پورتني تول ترنګ کې (د) تولوييکی (ښکليو) تولنومی او (پټکې) تولنوم دی.

لوياوه يې پټکو لره د ښکليو
چې ساته عبدالحميد شه په څار څار
(۱۰: ۶۹)

- د زړه وصل:

په پورتني شعري تول ترنګ کې (د) تولوييکی (زړه) تولنومی او (وصل) تولنوم دی. د دې ترڅنګ (زړه وصلېدل) ګړنه او مانا يې (اړيکی، تړون) ده.

هېڅ مې نه شي تسلي د زړه په وصل
د طوبی تر سيوري ناست يم مخ په نمر
(۱۰: ۷۰)



- د محبت آه فرياد:

په پورتني تول ترنګ کې (د) تولوييکی (محبت) تولنومی او (آه فرياد) تولنوم دی.

آه فرياد د محبت مشکله کاره
چې مې نه په سر، سرکېږي نه په زر
(۱۰: ۷۰)

- د دوو سترګو کعبه:

په پورتني تول ترنګ کې (د) تولوييکی (دوو سترګو) تولنومی او (کعبه) تولنوم دی. همدارنګه (دوو) شمېرنوم او (سترګو) شميرلی دی (دوو سترګو) شمېرنوم ترنګ بولو.



هغه مخ چې مې کعبه وه د دوو سترګو
مسلط کړ باندې خط مواس د کفر
(۱۰: ۷۲)

- د ترکو خیال:

په پورتني تول ترنګ کې (د) تولوییکی (ترکو) تولنومی او (خیال) تولنوم دی.

په هغو سترګو کې خیال د ترکو بند شي
انتظار چې یې حلقې کا د زنځیر
(۱۰: ۷۵)

- د زلفو ځېل:

په پورتني تول ترنګ کې (د) تولوییکی (زلفو) تولنومی او(ځېل) تولنوم دی.همدارنګه تشبیهي ترنګ هم دی (زلفې) مشبه (ځېل) مشبه به او (جوړښت، اوږدوالی) ګډ صفت دی.

ډېر یې ویار زما د کار کاوه ښه وشوه
چې زاهد په ځېل د زلفو شه اسیر
(۱۰: ۷۵)

- د اُمید زړي:

په پورتني تول ترنګ کې (د) تولوییکی (اُمید) تولنومی او (زړی) تولنوم دی. بلخوا یو تشبیهي ترنګ هم دی (اُمید) مشبه (زړي) مشبه به او ګډ صفت یې (هیله) ده.

د (غم غوبلونه) په تول ترنګ کې (د) تولوییکی (غم) تولنومی او (غوبلونه) تولنوم دی. همدارنګه، یو تشبیهي ترنګ هم دی (غم) مشبه (غوبلونه) مشبه به او ګډ صفت یې (ځپل، کړول) دی.

څه نشونما به کا زما د امید زړي
ګرځي مې په سر د غم غوبلونه ګېر و پېر
(۱۰: ۷۶)



- د جدايۍ فوجونه:

په پورتني تول ترکیب کې (د) تولوییکی (جدايي) تولنومی او (فوجونه) تولنوم دی.

وخاته فوجونه مې په سر د جدايۍ
لور په لور هم دا غږ و آواز دی چې پېر پېر
(۱۰: ۷۶)

- د میني سر درد:

په پورتني تول ترکیب کې (د) تولوییکی (مینه) تولنومی او (سر درد) تولنوم دی.

ورك به مې د میني د سر درد نه شي حمیده !
ولي چې تړلی سره وایي سرو سپېر
(۱۰: ۷۶)

- د تورو زلفو کفرستان:

په پورتني تول ترکیب کې (د) تولوییکی (توري زلفې) تولنومی او (کفرستان) تولنوم دی. د ټول ترکیب په منځ کې (تورو زلفو) ستاینوم ترکیب دی (تورې) ستاینوم او(زلفې) ستایلی دی. بلخوا، یو تشبیهي ترکیب هم دی (تورې زلفې) مشبه (کفرستان) مشبه به او ګډ صفت یې (تاریکي، توروالی) دی.

چې مې ولید کفرستان د تورو زلفو
عقل و هوښ مې له خاطره د اسلام لاړ
(۱۰: ۷۹)

- ځان خوړل :

پورتنی ترکیب ګړنه او مانا یې (ځوربدل، مړه کېدل، وژل کېدل، سرخوړل) ده.

چې د ظلم په کمر دې تل میدان خوړ
دماغي ځان ته غره خود به دې ځان خوړ



(۱۰: ۸۰)

- د اوښو سېل:

په پورتني تول ترنګ کې (د) تولوییکی (اوښې) تولنومی او (سېل) تولنوم دی. بلخوا، یو تشبیهي ترنګ هم دی (اوښې) مشبه (سېل) مشبه به او (حرکت اوجوړښت) یې ګډه ستاینه ده.

څه به نه نړېده برج د ستا د عمر
د مظلوم د اوښو سېل یې هر زمان خوړ
(۱۰: ۸۰)

- د پند پومبه:

په پورتني تول ترنګ کې (د) تولوییکی (پند) تولنومی او (پومبه) تولنوم دی. د (په غوږ کې پومبه اېښوول) ترنګ ګړنه او مانا یې ( نه اورېدل، غوږ کڼول) ده.

د رقیب د پند پومبه دې پکې ایښې
چې دې نه لګي په غوږ زما آواز
(۱۰: ۸۲)

- د زړه سوز:

په پورتني تول ترنګ کې (د) تولوییکی (زړه) تولنومی او (سوز) تولنوم دی. دارنګه (زړه سوځول) ګړنه او مانا یې (همدردي، په غم کې ګډون) ده.

شه مې سوز لکه د شمعې دل افروز
په ژړا مې ځکه نه ځي د زړه سوز
(۱۰: ۸۴)

- د خاطر زخم:

په پورتني تول ترنګ کې (د) تولوییکی (خاطر) تولنومی او (زخم) تولنوم دی.

چې رفو کا دحمید د خاطر زخم



مونده نه شي يو دلدار هسې دلدوز
(۱۰: ۸۵)

- نوخېز حسن:

دا ستاينوم ترڼگ دی. (نوخېز) ستاينوم (حسن) ستايلی دی.

چې نظر په نوخېز حسن کړم د ښکليو
راته هېڅ شي د بهار د گلو خېز
(۱۰: ۸۵)

- وچ گوگل:

په پورتني ستاينوم ترڼگ کې (وچ) ستاينوم (گوگل) ستايلی دی. بل ستاينوم ترڼگ (اوښلني سترگې) دی چې(اوښلنې) ستاينوم (سترگې) ستايلی دی.

وچ گوگل زېړه گونه اوښلني سترگې
په دعوه کې د عشق بويه دستاوېز
(۱۰: ۸۶)

- شکرلب:

پورتنی ستاينوم ترڼگ دوه توکي لري (شکر) او (لب). دواړه سره يوځای شوي او يو ستاينوم يې رغولی دی. همدارنگه يو تشبيهي ترڼگ هم دی (شکر) مشبه به (لب) مشبه او(خوږوالی) گډ صفت دی.

که يې لب د شکرلب زېښلي نه دي
د حميد زبان به څه شي شکر رېز
(۱۰: ۸۶)

- د ترکو ښکنځل:

په پورتني تول ترڼگ کې (د) تولوييکی (ترکو) تولنومی او (ښکنځل) تولنوم دی.

په دعا به څنې څه لره غوښته چا
که ښکنځل د ترکو نه وای شهد آمېز
(۱۰: ۸۶)



- په لمن لاس لګول:

پورتنی ترکیب ګړنه او مانا یې (مرسته او ملاتړغوښتل ) ده.

زر به ورسي په داد لـه کمینـۍ
لګولی دی حمید ستا په لمن لاس
(۱۰: ۸۹)

- د بوسې ګل و ثمر:

په پورتني تـول ترنـګ کې (د) تولـوییکی (بوسه) تولنومی او (ګـل و ثمـر) تولنـوم دی. بلخـوا یـو تشـبیهي ترنـګ هـم دی (بوسـه) مشـبه (ګـل و ثمـر) مشبه به او (خوږوالی او نرمښت) یې ګډ صفت دی.

چې ښنې ګل و ثمر د بـوسې ماتـه
هغه مخ کاندي بهار د خط و خال پس
(۱۰: ۹۱)

- د آزار غشی:

په پورتني تول ترنګ کې (د) تولـوییکی (آزار) تولنـومی او (غشـی) تولنـوم دی. بلخوا، یو استعاري ترنګ هم دی (آزار) قرینه (غشـی) مسـتعارمنه او (نظر، کتل) مستعارله دی.

د مظلـوم د آزار غشـی رسـا لګـي
هیڅ ګوزار یې خطا نه درومي عبس
(۱۰: ۹۲)

- له آزاره بازار موندل:

پـورتنی ترنـګ ګړنـه او مانـا یـې (د چـا پـه بـدمرغۍ کـې خپلـه نیکمرغـي لیدل) ده.

هر سړی چې له آزاره بازار غواړي
د دارو په طمع زهر خوري ناکس
(۱۰: ۹۲)

- د عشق فوج:



په پورتني تول ترېنګ کې (د) تولوییکی (عشق) تولنومی او (فوج) تولنوم دی.

چې پرې راشي د عشق فوج تول سیاه پوش
لا عـلاج له زړه ګوښـه شي عقل و هوش
(۱۰: ۹۵)

- د عشق دیګ ځوښېدل / دیګ ځوښېدل:

پـه پـورتني تـول ترېـنګ کـې (د) تولـوییکی (عشـق) تولنـومی او (د یـګ ځوښـېدل) تولنـوم دی. همداسـې ګړنـه هـم ده او مانـا یـې (لوړتیـا او اوج، لوړه کچه) ده. د (شرم و ننګ سرپوښ) په تول ترېنګ کې (د) تولوییکی (شرم و ننګ) تولنومی او (سرپوښ) تولنوم دی. بلخوا یو تشبیهي ترېنګ هم دی (شرم و ننګ) مشبه (سرپوښ) مشبه به او (پټول) یې ګډ صفت دی.

راغی دیګ زما د عشق هسې په ځوښ
چې پرې نه ودري د شرم و ننګ سرپوښ
(۱۰: ۹۶)

- خاورې پر سرېدل:

پورتنی ترېنګ ګړنه او مانا یې (بدمرغي، خوار و زارېدل) ده.

لکه زه خاورې په سر خوښ یم په عشق کې
بادشـاهـان به هسـې نه وي په افسر خوښ
(۱۰: ۹۶)

- مشکینې زلفې:

دا ترېنګ ستاینومیز دی (مشکینې) ستاینوم (زلفې) ستایلی دی. بلخوا، تشـبیهي هـم ده (زلفـې) لـه (مشـکو) سـره تشـبیه شـوې دي (زلفـې) مشـبه (مشـك) مشـبه بـه او ګـډ وصـف یـې (تـور رنـګ او خوشـبویي) ده. د دې ترځنګ (خاورې پر سر کېدل / در په در کېدل) هم ګړنې دي چې مانـا یـې (غم ځپلی، نتلی او ویرجن) ده.



چې مې کېږي په مشکينو زلفو مينه
در په در يم لکه باد، خاورې په سر خوښ
(۱۰: ۹۷)

- د ديد وږی مزری :

په پورتني تول ترنګ کې (وږی مزری) ستاينوم ترنګ دی (وږی) ستاينوم (مزری) ستايلی دی. همدا ډول په ټول تول ترنګ کې(د) تولوييکی (ديد) تولنومی او(وږی مزری) تولنوم دی.

په سبب د عشق دې هم را غرض نه کا
که د ديد وږي مزري شي سل په ما پېښ
(۱۰: ۹۸)

- د پېغور داغ:

په پورتني تول ترنګ کې (د) تولوييکی (پېغور) تولنومی او (داغ) تولنوم دی. همدارنګه يو تشبيهي ترنګ هم دی (پېغور) مشبه (داغ)مشبه به، ګډ صفت يې(ځور او بد لګېدل) دی.

هر يو داغ شي د پېغور راپورې نښلی
چې بې ياره مې هر دم د ژوندون وکېښ
(۱۰: ۱۰۰)

- د رخسار لمبه:

په پورتني تول ترنګ کې (د) تولوييکی (رخسار) تولنومی او (لمبه) تولنوم دی. همدارنګه يو تشبيهي ترنګ هم دی (رخسار) مشبه (لمبه) مشبه به او ګډ صفت يې (د وړانګو پورته کېدل، يورنګ اغېز) دی. د (حسن فراش) په تول ترنګ کې (د) تولوييکی (حسن) تولنومی او (فراش) تولنوم دی.

په لمبه يې د رخسار وسه ايرې شه
چې يې کېښود په فراش د حسن ګام خط
(۱۰: ۱۰۸)



- د مینې اور:

په پورتني تول ترړنګ کې (د) تولوییکی (مینه) تولنومی او (اور) تولنوم دی. همدارنګه یو تشبیهي ترړنګ هم دی (مینه) مشبه (اور) مشبه به او ګډ صفت یې(ځورول او کړول) دی.

چې په اور د مینې بل کا بله شمع
ماه و مهر کا د ثابت خجله شمع
(۱۰: ۱۱۲)

- د حیا پښه:

په پورتني تول ترړنګ کې (د) تولوییکی (حیا) تولنومی او (پښه) تولنوم دی. همدارنګـــــــــــــــــــــــــــــــــــــــــــــــــــه

(د حیا پښه ښویېدل) یوه ګړنه او مانا یې ( شرمېدل، پزه پرېکېدل) ده.

د هغو د حیا پښه مدام ښویېږي
چې یې واخېسته د نس په هوی طمع
(۱۰: ۱۱۳)

- ګلبدن:

په پورتني ستاینوم ترړنګ کې (ګل) ستاینوم او (بدن) ستایلی دی. بلخوا تشبیهي ترړنګ دی (ګل) مشبه به (بدن) مشبه او ګډ صفت یې(نرموالي او پوستوالی) دی. د (سترګې پرانیستل) ترړنګ ګړنه او مانا یې (سترګې غړول، ځېرېدل، پوهېدل) ده.

چې په مخ د ګلبدن سترګې پرانیځي
غونچه نه کا سم کاته له دې دماغ
(۱۰: ۱۱۵)

- د اوښو جوی:

په پورتني تول ترړنګ کې (د) تولوییکی (اوښو) تولنومی او (جوی) تولنوم دی.

ته په جوی زما داوښو



تازه کېږي لکه باغ
(۱۰: ۱۱۷)

- د فکر توره:

په پورتني تول ترېنگ کې (د) تولوييکی (فکر) تولنومی او (توره) تولنوم دی. همدارنگه تشبيهي هم دی (فکر) مشبه ( توره) مشبه به او (تېزوالی) يې گډ وصف دی. د (توره اچول) ترېنگ گړنه او مانا يې (بربنډول، ځرګندول، په زړورتيا عمل کول، ښکاره کول ډاډمن حرکت کول) ده.

اوس د فکر توره واچوه حميده !
چې دې نشته په پښتو کې څوك حريف
(۱۰: ۱۲۱)

- د عاشقۍ رنځ:

په پورتني تول ترېنگ کې (د) تولوييکی (عاشقۍ) تولنومی او (رنځ) تولنوم دی. همدارنگه يو تشبيهي ترېنگ هم دی (عاشقۍ) مشبه (رنځ ) مشبه به او گډ صفت يې (ځورول او کړول) دي.

نه دی هسې زيانمن رنځ د عاشقۍ
چې رنځور يې و علاج ته لري شوق
(۱۰: ۱۲۵)

- برندې سترگې:

په پورتني ستاينوم ترېنگ کې (برندې) ستاينوم او (سترگې) ستايلی دی.

څه کرم لري د ښکليو برندې سترگې
چې د قتل و احتياج ته لري شوق
(۱۰: ۱۲۵)

- د غمونو امواج :

په پورتني تول ترېنگ کې (د) تولوييکی (غمونو) تولنومی او (امواج) تولنوم دی. د (خاطر سرېدل) ترېنگ گړنه او مانا يې (ډاډمنېدل) ده.

د هوس له کنارې مې خاطر سوړ شه



د غمونو و امواج ته لري شوق
(۱۰: ۱۲۵)

- ګل اندام:

په پورتني ترکیب کې (ګل) ستاینوم او (اندام) ستایلی دی. بلخوا تشبیهي ترکیب دی (ګل) مشبه به (اندام) مشبه او ګډه ستاینه یې (نرموالی او پوستوالی) دی.

هر چې خوب لکه غونچه کا په طلب د ګل اندامو
په پېغور د هغو سترګې شبنم وکاږي په نوك
(۱۰: ۱۲۷)

- خونخوار لب:

په پورتني ستاینوم ترکیب کې (خونخوار) ستاینوم او (لب) ستایلی دی.

دغه خپل خونخوار لب پوښته دلبره
چې تغییر دی د حمید په څه کبل رنګ
(۱۰: ۱۳۲)

- تش په توره:

پورتنی ترکیب یوه ګړنه او مانا یې (هسې، بې ځایه، خوشې، بې ګټې، هېڅ) ده. (دوکان ګرمول) بله ګړنه او مانا یې (ځان مشهورول، خپل مینه وال زیاتول) ده.

د وفا مال و متاع پکې هېڅ نشته
تش په توره ګرموي ښکلي دکان خپل
(۱۰: ۱۳۳)

- د یقین سترګې:

په پورتني تول ترکیب کې (د) تولوییکی (یقین) تولنومی او (سترګې) تولنوم دی. د (سترګې سپړدل) ترکیب ګړنه او مانا یې (کتل او لیدل) ده.

چې یې عشق د یقین سترګې سپړدې نه دي
څکه پرېوست ارستو په ګمان عقل
(۱۰: ۱۳۸)



- د خوښۍ جام:

په پورتني تول ترکیب کې (د) تولوییکی (خوښۍ) تولنومی (جام) تولنوم دی. د (درد وغم ایرې) په ترکیب کې (د) تولوییکی (درد و غم) تولنومی(ایرې) تولنوم دی.

سیده جام د خوښۍ نه وي په خوله ایښی
بیا ایرې د درد و غم کا پکې ګول
(۱۰: ۱۳۹)

- د عمر د پوال:

په پورتني تول ترکیب کې (د) تولوییکی (عمر) تولنومی (د پوال) تولنوم دی. همدارنګه یو تشبیهي ترکیب هم دی (عمر) مشبه (د پوال) مشبه به او ګډ صفت یې (اوږدوالی او جوړښت) دی. د (عمر د پوال پرېوتل) ترکیب ګړنه او مانا یې (مړل او د ژوند پای) ده.

زر په زر به دې د پوال د عمر پرېوځي
چې یې زدویي د مظلوم د اوښو زېم
(۱۰: ۴۶)

- د غرور پومبه:

په پورتني تول ترکیب کې (د) تولوییکی (غرور) تولنومی (پومبه) تولنوم دی. د (پند نغمه) تول ترکیب کې (د) تولوییکی (پند) تولنومی (نغمه) تولنوم دی.

د غرور پومبه راکاږه له غوږونو
واوره ښه د پند نغمه په زېر و بم
(۱۰: ۱۴۷)

- د غفلت زخم:

په پورتني تول ترکیب کې (د) تولوییکی (غفلت) تولنومی (زخم) تولنوم دی. بیا یو استعاري ترکیب دی (غفلت) قرینه (زخم) مستعارمنه او (سرټیټی) مستعارله دی.





د غفلت زخم به زر د ستا ناسور شي
چې پرې نه ږدې د نېکخواه د پند مرهم
(۱۰: ۱۴۹)

- د زلفو زنځير:

په پورتني تول ترنګ کې (د) تولوييکی (زلفو) تولنومی (زنځير) تولنوم دی. همدارنګه يو تشبيهي ترنګ هم دی (زلفې) مشبه (زنځير) مشبه به او ګډه صفت يې (جوړښت) دی. د (عشق صحرا) په ترنګ کې (د) تولوييکی (عشق) تولنومی (صحرا) تولنوم دی.

ځغلوي راپسې يار زنځير د زلفو
چې د عشق په صحرا سر لکه مجنون شم
(۱۰: ۱۴۹)

- اسمان په غونډو ويشتل:

پورتنی ترنګ ګڼه او مانا يې (بې ګټې کار کول، ناشونی کار کول) ده.

په تدبير سره تقدير کله تغيير خوري
چې دا فکر کړم اسمان په غونډو ولم
(۱۰: ۱۵۰)

- د داغ شمع:

په پورتني شعري تول ترنګ کې (د) تولوييکی (داغ) تولنومی (شمع) تولنوم دی.

د غم شپه مې بې ډيوې خدای هډو مه کړه
هر ماښام شمع د داغ زه بلوم
(۱۰: ۱۵۱)

- د قد همسا:

په پورتني تول ترنګ کې (د) تولوييکی (قد) تولنومی(همسا) تولنوم دی. همدارنګه يو تشبيهي ترنګ هم دی (قد)مشبه (همسا)مشبه به او ګډه صفت يې(جګوالی،اوږدوالی اوجوړښت) دی. د (زړه لاس) په تول ترنګ



کې (د) تولوییکی (زړه) تولنومی(لاس) تولنوم دی. همدارنګه یو استعاري تړنګ هم دی (زړه) قرینه (لاس) مستعارمنه او(هیلې) مستعارله دی. د (زلفو کوڅه) په تول تړنګ کې (د) تولوییکی (زلفو) تولنومی(کوڅه) تولنوم دی.

راله را همسا د قد د زړه په لاس کې
په کوڅه کې ستا د زلفو شب کور پروت یم
(۱۰: ۱۵۶)

- د پېغور باد:

په پورتني تول تړنګ کې (د) تولوییکی (پېغور) تولنومی (باد) تولنوم دی.

زه که کك وای د پېغور باد به وم وړی
ولې خاورې یم په در ستا په زور پروت یم
(۱۰: ۱۵۷)

- بې آبه سترګې:

په پورتني ستاینوم تړنګ (بې آبه) ستاینوم او (سترګې) ستایلی دی.

نه شپه و ورځ ژاړم، نه له خوبه شوم بې خوبه
آب بې آبو سترګو زما ورك كا كه حق وایم
(۱۰: ۱۵۸)

- د سترګو باز:

په پورتني تول تړنګ کې (د) تولوییکی(سترګې) تولنومی(باز) تولنوم دی. همدارنګه یو استعاري تړنګ هم دی (سترګې) قرینه (باز) مستعارمنه او (پام او التفات) مستعارله دی. د (ځیر طُعمه) په تول تړنګ کې (د) تولوییکی (ځیګر) تولنومی(طعمه) تولنوم دی. بلخوا د (ځیګر طعمه نیول یا ورکول) ګړنه او مانا یې (هر ډول قرباني ورکول، ستره قرباني ورکول) ده.

التفات يې راته باز د سترګو نه کا
که هر څو ورته طُعمه د څيګر نيسم
(۱۰: ۱۶۱)

- غونچه خوله:

په پورتني ستاينوم ترکيب کې (غونچه) ستاينوم او (خوله) ستايلی دی.

غونچه خوله چې په خبرو راته واکا
د نرګس په څېر کوز ګورم شرمسار يم
(۱۰: ۱۶۲)

- د زړه دُر:

په پورتني تول ترکيب کې (د) تولوييکی (زړه) تولنومی (دُر) تولنوم دی.
همدارنګه استعاري ترکيب هم دی (زړه) قرينه (دُر) مستعارمنه او (خبرې، هيلې ، رازونه) مستعارله دی.

دم قدم يې په پېيل د زړه د درو
د راستۍ په ستن وهلی نری تار شم
(۱۰: ۱۶۲)

- د تورو زلفو کفار:

په پورتني تول ترکيب کې (د) تولوييکی (تورې زلفې) تولنومی او (کفار) تولنـــــــــــــــــــــــــــــــــــــــــــــــــــــــــوم دی.
(تورې زلفې) بل ستاينوم ترکيب دی (تور) ستاينوم او (زلفې) ستايلی دی.
همدارنګه يو تشبيهي ترکيب هم دی (تورې زلفې) مشبه (کفار) مشبه به او ګډ صفت يې (تاريکي يا توروالی ) دی.

ومې باسي د سکون له ديندارۍ
چې بندي د تورو زلفو په کفار شم
(۱۰: ۱۶۳)

- د عشق جهل:

په پورتني تول ترکيب کې (د) تولوييکی (عشق) تولنومی او (جهل) تولنوم



دی. همدارنګه (عشق) له (جهالت) سره تشبیه شوی (عشق) مشبه (جهل) مشبه به (ناپوهي او سرغړونه) یې ګډه صفت دی.

ځان به مړ د عشق په جهل کړم ناصحه !
وا به نه وړم زه حمید هسې پښتون یم
(۱۰: ۱۶۴)

- کاږه کاته:

په پورتني کړول ترنګ کې (کاږه) کړول او (کاته) کړولی دی. د دې ترخنګ (په ځنګ کاږه کتل) ګړنه او مانا یې ( خپه کېدل، مخالفت ) ده.

بیا په ځنګ کاږه کاته کاندي نګار نن
خدای دې خیر و کا په باب زما افګار نن
(۱۰: ۱۶۶)

- د اوښو باران:

په پورتني تول ترنګ کې (د) تولوییکی (اوښې) تولنومی او (باران) تولنوم دی. همدارنګه یو تشبیهي ترنګ هم دی (اوښې) مشبه (باران) مشبه به او ګډه صفت یې (جوړښت) دی. د (پرزړه غبار پرېوتل) ترنګ ګړنه او مانا یې (شکمن کېدل، ناخوښي) ده.

چې پیوست مې اوروي باران د اوښو
پرېوتلی یې په زړه دی څه غبار نن
(۱۰: ۱۶۶)

- د مخ مجمر:

په پورتني تول ترنګ کې (د) تولوییکی(مخ) تولنومی او (مجمر) تولنوم دی. همدارنګه یو تشبیهي ترنګ هم دی (مخ) مشبه (مجمر)مشبه به او ګډه صفت یې (وړانګې پورته کېدل) دی. د (کسي له چشمانو لوېدل) ترنګ ګړنه او مانا یې (سترګې ډېرې درد بدل) ده.



په مجمر مې يې د مخ لوېږي له شوقه
د سپند په طـور کسي لـه چشمانـو
(۱۰: ۱۷۲)

- د لبانو خراغ:

په پورتني تول ترڼک کې (د) تولوييکى (لبان) تولنومى او (خراغ) تولنوم دى. همدارنګه يو تشبيهي ترڼک هم دى (لبان) مشبه (خراغ) مشبه به او ګډ صفت يې (سوروالى يا سرې ورانګې) دى. د (وره خوله) په ستاينوم ترڼک کې (وړه) ستاينوم او (خوله) ستايلى دى.

ګفتګوى به يې بيا نه مونده وره خوله
که خـراغ ورته بـل نه وي د لبانـو
(۱۰: ۱۷۲)

- د مژګانو تېره غشي:

په پورتني تول ترڼک کې (د) تولوييکى (مژګان) تولنومى او (تېره غشي) تولنوم دى. (تېره غشي) ستاينوم ترڼک دى (تېره) ستاينوم او (غشي) ستايلى دى. همدارنګه يو تشبيهي ترڼک هم دى (مژګان) مشبه (تېره غشي) مشبه به او ګډ صفت يې (جوړښت او اغېز) دي.

بختر پوښ د صبر و زهد ځني تېښتي
چې په ګورت کا تېره غشي د مژګانو
(۱۰: ۱۷۲)

- ميګوني شونډې:

پورتنى ترڼک تشبيهي دى (مي) مشبه به (ګونـه) د تشـبيه تـورى (شـونډې) مشبه (سوروالى او نشه کول) يې ګډ صفت دى.

چې حميد کا په ميګونـو شونډو مينه
زر به کښېني په حلقو کې د مستانو
(۱۰: ۱۷۳)

- د عشق اور:



په پورتني تـول تړنګ کې (د) تولـوييکی (عشـق) تولنومی او (اور) تولنـوم دی. همدارنګه يو تشبيهي تړنګ هم دی (عشـق) مشـبه (اور) مشـبه بـه او ګډ صفت يې (ګرمښت او کيفي يورنګي ) دی.

هم په دا چې د عشق اور پرې زر ولګي
دا زمـا صـورت ګېډۍ کړې د وښــو
(۱۰: ۱۷۳)

- د عشق توبرې:

په پورتني تول تړنګ کې (د) تولوييکی(عشق) تولنومی او (تـوبری) تولنـوم دی. دلتـه (زړګـی کېـدل) ګڼـه او مانـا يـې (ډيـر ګرانښـت، لـه ځانـه نـه بېلېدونی څيز) ده.

د آشنا د عشق توبرې زما زړګی شـه
کړلی نه شم ځکه حکم په وکښــو
(۱۰: ۱۷۳)

- د غم کاڼي اوريدل:

پـورتنی تړنـګ يـوه ګڼـه او مانـا يـې (ډېـرې اندېښـنې، ډېرې پرېښـانۍ ، ډېرځور، ډېرغمونه) ده.

هی توبه د عشق له ملکـه له ورشو
چې پرې اوري د غم کاڼي په رشو
(۱۰: ۱۷۴)

- د وروځو خيال:

په پورتني تول تړنګ کې (د) تولوييکی (وروځو) تولنومی او (خيال) تولنـوم دی.

دا ديار د وروځو خيال دی نه پوهېږم
کـه لـړم مې ټکوهي زړه پـه لشـو
(۱۰: ۱۷۴)



- د مخ ښهر:

په پورتني تول ترېنګ کې (د) تولوییکی (مخ) تولنومی او (ښهر) تولنوم دی.

چې يې تل پکې کول سترګو خونونه
د مخ ښهر يې د ږيرې مواس ونيو
(۱۰: ۱۷۷)

- د عشق تندر:

دا ترېنګ تولي دی (د) تولوییکی (عشق) تولنومی او (تندر) تولنوم دی. همدارنګه يو تشبيهي ترېنګ هم دی (عشق) مشبه (تندر) مشبه به او ګډ صفت يې (هيبت) دی.

چې نازل شه د عشق تندر له اسمانه
ما حميد د غم لايق ورته لاس ونيو
(۱۰: ۱۷۷)

- د سترګو غمزې:

په دې تول ترېنګ کې (د) تولوییکی (سترګې) تولنومی او (غمزې) تولنوم دی.

معلومېږي ستا د سترګو له غمزو
چې يې مرګ د تېره تېغ دی راپېرزو
(۱۰: ۱۷۷)

- د صبر سوبه:

په پورتني تول ترېنګ کې (د) تولوییکی (صبر) تولنومی او (سوبه) تولنوم دی.

که ترسره مې کا خدای د صبر سوبه
د ناکس له آشنايۍ توبه توبه
(۱۰: ۱۸۸)

- د نظر غشی:



په پورتني تول ترړنګ کې (د) تولوييکی (نظر) تولنومی او (غشی) تولنوم دی. همدارنګه يو تشبيهي ترړنګ هم دی (نظر) مشبه (غشی) مشبه به او ګډ صفت يې (توغېدل او لوکېدل) دی.

زړه مې ووت د ديدن د جنګ په هېڅه
ولې غشي د نظر په ښي په چپه
(۱۰: ۱۸۹)

- د غم مغل:

په پورتني تول ترړنګ کې(د) تولوييکی (غم) تولنومی او (مغل) تولنوم دی. همدارنګه يو تشبيهي ترړنګ هم دی (غم) مشبه به (مغل) مشبه او ګډ صفت يې (ناکراري، ظلم) دی.

په تمام جهان قراره قراري ده
په حميد د غم مغل راوخاته
(۱۰: ۱۹۰)

- د مهر سپر:

په پورتني تول ترړنګ کې (د) تولوييکی (مهر) تولنومی او (سپر) تولنوم دی.

که له غمه يې زړګی دوه نيمه وچوي
نه نيسي د مهر سپر و ذوالفقار ته
(۱۰: ۱۹۱)

- د تورو زلفو تيغ:

په پورتني تول ترړنګ کې (د) تولوييکی (تورې زلفې) تولنومی او (تيغ) تولنوم دی. بلخوا د (تورې زلفې)ستاينوم ترړنګ کې(تورې)ستاينوم او (زلفې) ستايلی دی. همدارنګه يو تشبيهي ترړنګ هم دی (تورې زلفې) مشبه (تيغ) مشبه به او ګډ صفت يې(جوړښت) دی.

چې په تيغ د تورو زلفو ومرم ښايي
که مې بوی د مښکو دورمي له تربته



(۱۰: ۱۹۳)

- د خط غبار:

په پورتني تول ترنګ کې (د) تولوييکی (خط) تولنومی او (غبار) تولنوم دی. بلخوا، يو استعاري ترنګ هم دی (خط)قرينه(غبار)مستعارمنه(ويښته، توروالی او اغېز) يې مستعارله دی.

د مراد حسن ځنې ځي پا په رکاب شه
چې يې پاځېده د خط غبار له مخه
(۱۰: ۲۰۱)

- د صبر غر:

په پورتني تول ترنګ کې (د) تولوييکی (صبر) تولنومی او (غر) تولنوم دی. همدارنګه يو تشبيهي ترنګ هم دی (صبر) مشبه (غر) مشبه به او ګډ صفت يې (لويوالی) دی.

په يوه نظر مې غر کاندي د صبر
هسې ويلې لکه موم د نار له مخه
(۱۰: ۲۰۱)

- د عشق ښهر:

په پورتني تول ترنګ کې (د) تولوييکی (عشق) تولنومی او (ښهر) تولنوم دی.

که مې مېشت په زړه کې ښهر د عشق نه وي
همېشه مې له خولې خېژي شور په څه
(۱۰: ۲۰۴)

- د مژګانو کاږه غشي:

په پورتني تول ترنګ کې (د) تولوييکی (مژګان) تولنومی او (کاږه غشي) تولنوم دی. بلخوا (کاږه غشي) ستاينوم ترنګ کې (کاږه) ستاينوم او (غشي) ستايلی دی.همدارنګه يو تشبيهي ترنګ هم دی (مژګان) مشبه





(کاږه غشي) مشبه به او ګډ صفت يې (جوړښت او اغېز) دی.

چې په ګورت کا کاږه غشي د مژګانو
کـه يې کج ګوزاروي لګي سيـده
(۱۰: ۲۰۸)

- د عقل ستن:

په پورتني تول ترڼګ کې (د) تولوييکی (عقل) تولنومی او (ستن) تولنوم دی.

اوس په څېرې ګرېوان مينه کړم په ښکليو
چې د عـقـل ستـن مې ووته لـه کنډه
(۱۰: ۲۱۰)

- د عشق تبه:

په پورتني تـول ترڼـګ کـې (د) تولـوييکی (عشـق) تولنـومی او (تبـه) تولنـوم دی.

چې پوښتنه مې د حال نه کړې دلبره
لا مې تبـه د عشـق نه ګـڼې شېبـره
(۱۰: ۲۱۳)

- د خاطر کشور:

په پورتني تول ترڼګ کې (د) تولوييکی (خاطر) تولنومی او (کشور) تولنوم دی.

هر ساعت پکې ناحق خونونه کيږي
د خاطر کشور مې ډك شه له فتوره
(۱۰: ۲۱۴)

- د زړه کډه:

په پورتني تول ترڼګ کې(د) تولوييکی (زړه) تولنومی او (کډه) تولنوم دی.
همدارنګـه يـو اسـتعاري ترڼـګ هـم دی (زړه) قرينـه (کـډه) مسـتعارمنه او (مينه، باور) مستعارله دی.



که ښيې راته هزار لـوړې ژورې
د زړه کډې به له تا ، نه کړم ستنې زه
(۱۰: ۲۲۰)

- د فکر شخوند:

پـه پـورتني تـول ترړنـګ کـې (د) تولـوييکی (فکـر) تولنـومی او (شـخوند) تولنـوم دی. بلخـوا ، يـو اسـتعاري ترړنـګ هـم دی (فکـر) قرينـه (شـخوند) مستعارمنه او (پلټنه، لټونه) مستعارله دی.

څو دې ښه د فکر شخوند زده کړی نه دی
چې شـه مـه کـوه خبره لـواړه لـواړه
(۱۰: ۲۲۱)

- د شونډېو کوثر:

دا ترړنګ تولي دی (د) تولوييکی (شونډې) تولنومی او (کوثر) تولنوم دی. بلخوا ، يو استعاري ترړنګ هم دی (شونډې) قرينه (کوثر) مستعارمنه او (خواږه، لذت) مستعارله او (خوږوالی) يې جامع وجه ده.

چې کوثر مې ستـا دشونډېو نصيب نه شي
خدای مې هېڅکله دا هسې شهيد مه کړه
(۱۰: ۲۲۱)

- د عشق نجار:

په پورتني تول ترړنګ کې (د) تولوييکی (عشق) تولنومی او (نجار) تولنوم دی. همدارنګه يو تشبيهي ترړنګ هم دی (عشق) مشبه (نجار) مشبه به او ګډ صفت يې (ځورول، رنځول) دی.

چې د عشـق نجار اره کړم سر ترپايه
تن مې پروت تختې تختې شه دړه دړه
(۱۰: ۲۲۲)

- د زړه دړه:

په پورتني تول ترړنګ کې (د) تولوييکی (زړه) تولنومی او (دړه) تولنوم دی.



ښه چې ښيله مې په غم شوه د زړه دړه
ګوندې شي پکې لمن د وصل اړه
(۱۰: ۲۲۳)

- د هجر غر:

په پورتني تول ترکيب کې (د) تولوييکی (هجر) تولنومی او (غر) تولنوم دی. بلخوا، يو تشبيهي ترکيب هم دی (هجر) مشبه (غر) مشبه به او ګډه صفت يې (درونداوالی) دی.

سپك سپك غر د يار د هجر هسې دروند دی
لکه ايښی په سينه وي غر د پاسه
(۱۰: ۲۲۴)

- مغرور حسن:

په پورتني ستاينوم ترکيب کې (مغرور) ستاينوم او (حسن) ستايلی دی.

په يو هسې مغرور حسن مبتلا شوم
چې لري تر نمر سپوږمۍ نظر د پاسه
(۱۰: ۲۲۵)

- د غم اور:

په پورتني تول ترکيب کې (د) تولوييکی (غم) تولنومی او (اور) تولنوم دی. همدارنګه يو تشبيهي ترکيب هم دی (غم) مشبه (اور) مشبه به او ګډه صفت يې (تاو، سوز) دی.

څوك و کومې خواته وتښتي ځان خلاص کا
په تمامې دنيا پورې د غم اور شه
(۱۰: ۲۲۵)

- د بلا په لکۍ سپرېدل:

دا ترکيب يوه ګړنه او مانا يې (پر کړاو کې کېوتل، تر ګواښ لاندې راتلل) ده.

څه حاکم څه رعيت څه غير وزير



جهان واړه د بلا په لکۍ سپور شه
(۱۰: ۲۶)

- د حکم جام:

په پورتني تول ترړنګ کې (د) تولوییکی (حکم) تولنومی او (جام) تولنوم دی. بلخوا، یو استعاري ترړنګ هم دی (حکم) قرینه (جام) مستعارمنه او (واکې، واك) مستعارله دی.

څه به شور نه وي د هند په میخانه کې
چې اورنګ څخه د حکم جام نسکور شه
(۱۰: ۲۲۶)

- د وصل ښهر:

په پورتني تول ترړنګ کې (د) تولوییکی (وصل) تولنومی او (ښهر) تولنوم دی. د (هجران فوج) په ترړنګ کې (د) تولوییکی (هجران) تولنومی او (فوج) تولنوم دی. همدارنګه یو تشبیهي ترړنګ هم دی (هجران) مشبه (فوج) مشبه به او ګډ صفت یې (ځواك او زور) دی.

تار په تار یې کړ زما د وصل ښهر
د هجران فوج له کومه لوري سور شه
(۱۰: ۲۲۸)

- د طمعې زنځیر:

په پورتني تول ترړنګ کې (د) تولوییکی(طمعې) تولنومی او (زنځیر) تولنوم دی. همدارنګه یو تشبیهي ترړنګ هم دی (طمعه) مشبه (زنځیر) مشبه به او ګډ صفت یې (جوړښت) دی.

نور قیدونه واړه سهل دي حمیده !
خو په غاړه دې د طمعې زنځیر مه شه
(۱۰: ۲۳۱)

- پریشانه زلفې:

په پورتني ستاینوم ترړنګ دی (پریشانه) ستاینوم او (زلفې) ستایلی دی. د



(زړه جمع کېدل یا زړه راټولېدل) ترنګ ګڼنه او مانا یې (بې غمه کېدل، له اند یښنو خلاصېدل) ده.

هېڅ مې زړه پرېشانو زلفو جمع نه کا
دغه دین په هندو بار کې نه وو نه شه
(۱۰: ۲۳۱)

- د ګومان لینده:

دا ترنګ تولي دی (د) تولوییکی(ګومان) تولنومی او (لینده) تولنوم دی.
د ( باور غشی)په شعري تول ترنګ کې (د) تولوییکی (باور) تولنومی او (غشی) تولنوم دی.

که هر څو کړي د ګومان لینده بر کښه
د باور غشی به لك نه کړي له نښه
(۱۰: ۲۳۴)

- د مرګ مزری:

په پورتني تول ترنګ کې (د) تولوییکی (مرګ) تولنومی او (مزری) تولنوم دی.

چې هر څو د مرګ مزری ورته ښووه شي
څه به نه شي د حمید غزاله خوښه
(۱۰: ۲۳۴)

- تنکۍ خوله:

په پورتني ستاینوم ترنګ کې (تنکۍ) ستاینوم او (خوله) ستایلی دی. د (زړه تنګېدل) ترنګ ګڼنه او مانا یې (خپه کېدل، پریشانه کېدل) ده.

چې یې ستا د تنکۍ خولې تصور واخېست
په دا فکر کې غونچه شوه په زړه تنګه
(۱۰: ۲۴۰)

- د عشق بې دمه مار:

په پورتني تول ترنګ کې (د) تولوییکی (عشق) تولنومی او (بې دمه مار)



تولنــوم دی. بلخــوا (بــې دمــه مــار) ســتاینوم ترنــګ دی چــې (بــې دمــه ستاینوم او (مــار) ســتایلی دی. همدارنګــه یــو تشــبیهي ترنــګ هــم دی (عشــق) مشــبه (بــې دمــه مــار) مشــبه بــه او ګــډ صــفت یــې (نــا درملنــه او لاعلاجي) ده.

چې چيچلی دې د عشق بې دمه مار يم
خود به دم راښخـه وکـاږي تر دمه
(۱۰: ۲۴۷)

- د مخ ګل:

دا ترنــګ تــولي دی (د) تولــوييکی (مــخ) تولنــومی او (ګــل) تولنــوم دی. همدارنګـه يـو تشـبيهي ترنـګ هم دی (مـخ) مشـبه(ګل) مشـبه بـه او ګـډ صفت يې (ښکلا) ده. د (زړه شګوفه) په تول ترنګ کې(د) تولـوييکی (زړه) تولنومی او (شـګوفه) تولنوم دی. همدارنګه داهم يو تشبيهي ترنګ دی (زړه) مشبه (شګوفه) مشبه به او ګډ صفت يې (جوړښت) دی.

چې يې ګل د ستا د مخ په ګريوان کښېښنو
شـګوفه د زړه په وينو کې غرقاب شوه
(۱۰: ۲۵۷)

- د کامل عشق زلزله:

په پورتني تول ترنـګ کې (د) تولـوييکی (کامـل عشـق) تولنـومی او (زلزلـه) تولنــــــــــــــــــــــــــــــــــــــــــــــــــــــــــــــــــــوم دی. د (کامل عشق) په ستاينوم ترنـګ کې (کامـل) سـتاينوم او (عشـق) سـتايلی دی.

زلـزله د کامـل عشـق راباندې نه وه
چې د تن ماڼۍ مې زېر و زبر نه شوه
(۱۰: ۲۰۹)

- د قيامت سېلاب:

دا ترنــګ تــولي دی (د) تولــوييکی (قيامــت) تولنــومی او(ســېلاب) تولنــوم



دی. همدارنګه يو تشبيهي ترړنګ هم دی (قيامت) مشبه (سېلاب) مشبه به او ګډ صفت يې (ويجاړول) دی.

خدای دې زر که د قيامت په سېلاب ورانې
دا لـه ګـنـده د نفـاق ډکـې بستـۍ
(۱۰: ۲۶۴)

- منګرې زلفې:

دا ترړنګ ستاينوميز دی (منګرې) ستاينوم او (زلفې) ستايلی دی.

د آشنا د منګـرو زلفـو په خيـال کې
موی په موی راباندې زهر د منګور ځي
(۱۰: ۲۶۴)

- وچې سترګې:

په پورتني ستاينوم ترړنګ کې (وچې) ستاينوم او (سترګې) ستايلی دی.

چې د وچو سترګو شرم مې پرې پټ شي
راپرې ايښـی د ستا غم هومره نو نه دی
(۱۰: ۲۶۹)

- د پرهېز مزری:

په پورتني تول ترړنګ کې (د) تولوييکی (پرهېز) تولنومی او (مزری) تولنوم دی. بلخوا، يو استعاري ترړنګ هم دی (پرهېز) قرينه (مزری) مستعارمنه او (ځواک، قوت، سختوالی) مستعارله دی.

چې په خپل دم و افسون رايشي ښکلي
د پـرهـېز پـه مـزرو واچـوي وري
(۱۰: ۲۷۳)

- زري فکر:

پورتنی شعري ترړنګ ستاينوميز دی (زري) ستاينوم او (فکر) ستايلی دی.

څه عجب ساده رنګين وايي حميده !
دا زري فـکـر دې مـه شه نظـري
(۱۰: ۲۷۴)



- د شګو پړی:

دا ترڼګ تولي دی (د) تولوییکی (شګو) تولنومی او (پړی) تولنوم دی. همدارنګه (د شګو پړی غړل) ګڼه او مانا یې (هېڅ ، بې مانا، بې ګټې او ناشونی کار کول) ده. د (لېچې غړل) ترڼګ هم ګڼه او مانا یې (اراده، هوډ، چمتو کېدل) ده.

چې له تا زهد و پرهېز ته لېچې غړي
هغه غړي په مانا د شګو پړي
(۱۰: ۲۷۵)

- د غمونو غوټې:

پورته ترڼګ تولي دی (د) تولوییکی (غمونه) تولنومی او (غوټې) تولنوم دی. همدارنګه یو تشبیهي ترڼګ هم دی (غمونه) مشبه (غوټې) مشبه به او ګډ صفت یې (جوړښت) دی. د (د زړه غوټې سپړل) ترڼګ ګڼه او مانا یې (د زړه رازونه / خبرې ښکاره کول). همداسې (شونډې سپړل) هم ګڼه او مانا یې (خندېدل) ده.

په خندا کې څخو شونډې راوسپړه
که مې غوټې د غمونو له زړه سپړې
(۱۰: ۲۸۱)

- د عشق مزری:

په پورتني تول ترڼګ کې(د) تولوییکی (عشق) تولنومی او (مزری) تولنوم دی. همدارنګه یو تشبیهي ترڼګ هم دی (عشق) مشبه (مزری) مشبه به او ګډ صفت یې (زور و ځواک) دی. د (خپرې ښتېل) ترڼګ ګڼه او مانا یې (چاته ګواښېدل، ځوك ننګول) ده.

عاقبت د عشق مزری راباندې ترپ کا
چې ښتېلې یې مدام راته خپرې
(۱۰: ۲۸۱)

- د تورو زلفو پړی:



په پورتني تول ترنګ کې (د) تولوييکی (تورې زلفې) تولنومی او (پړی) تولنوم دی. د (تورو زلفو) ترنګ ستاينوميز دی (تورې) ستاينوم او(زلفې)ستايلی دی. همدارنګه يو تشبيهي ترنګ هم دی (تورې زلفې) مشبه (پړی) مشبه به او ګډ صفت يې (جوړښت) دی.

بيا به څوك ته په زندی اوېزان وژني
چې دې څوړند کړه د تورو زلفو پړي
(۱۰: ۲۸۳)

- د آهونو لوګی:

په پورتني تول ترنګ کې (د) تولوييکی (آهونو) تولنومی او (لوګی) تولنوم دی. همدارنګه يو تشبيهي ترنګ هم دی (آهونه) مشبه (لوګی) مشبه به او ګډ صفت يې (جوړښت) دي.

بيا له کومه رخه اور په حميد بل شه
چې له خولې يې د آهونو لوګی کېږي
(۱۰: ۲۸۶)

- غوني زيږېدل:

دا ترنګ يوه ګړنه او مانا يې (وېرېدل، وارخطا ، بوږنېدل) ده.

چې حميد د يار له غم کا سوې کريږه
د پېريانو غوني زيږ د يوان په دوك شي
(۱۰: ۲۸۹)

- د خط شپه:

په پورتني تول ترنګ کې (د) تولوييکی (خط) تولنومی او (شپه) تولنوم دی. همدارنګه يو تشبيهي ترنګ هم دی (خط) مشبه (شپه) مشبه به او ګډ صفت يې (رنګ، توروالی) دی.

هسې شپه د يار د خط راباندې راغله
چې هرګز به تر قيامته سحر نه شي
(۱۰: ۲۹۱)



- د هجر تشنك:

په پورتني تول ترکیب کې (د) تولوییکی (هجر) تولنومی او (تشنك) تولنوم دی. د (وصال کوثر) په تول ترکیب کې (د) تولوییکی (وصال) تولنومی او (کوثر) تولنوم دی. بلخوا یو استعاري ترکیب هم دی (وصال) قرینه (کوثر) مستعارمنه (خواږه) مستعارله او (خوږوالی) وجه جامع ده.

چې وهلی وي تشنك د یار د هجر
تسلي یې د وصال په کوثر نه شي
(۱۰: ۲۱۹)

- د زړه مجلس:

په پورتني تول ترکیب کې (د) تولوییکی (زړه) تولنومی او (مجلس) تولنوم دی. د (زړه مجلس تودېدل) ترکیب کړنه او مانا یې (خوښېدل) ده.

څو اغاز پکې د میني سرود نه شي
په نور څه به دا مجلس د زړه تود نه شي
(۱۰: ۲۹۲)

- د عاشقۍ تور دېو:

دا ترکیب تولي دی (د) تولوییکی (عاشقي) تولنومی او (تور دېو) تولنوم دی. د (تور دېو) ترکیب ستاینومیز دی (تور) ستاینوم او(دېو) ستایلی دی. همدارنګه یو تشبیهي ترکیب هم دی (عاشقي) مشبه (تور دېو) مشبه به او ګډ صفت یې (وحشتناك او ناوړه جوړښت) دی.

چې یې ووهي تور دېو د عاشقۍ
هېڅ محنت یې د جهان په افسون نه شي
(۱۰: ۲۹۲)

- خوږې شونډې:

په پورتني ستاینوم ترکیب کې (خوږې) ستاینوم او (شونډې) ستایلی دی.
د (تریخ صبر) ستاینوم ترکیب کې (تریخ) ستاینوم او (صبر) ستایلی دی.

چې تر خولې یې شي خواږه د خوږو شونډو



هغه زړه به ترخه صبر ته ستون نه شي
(۱۰: ۲۹۳)

- نامحرم ساقي:

په پورتنی ستاينوم ترکیب کې (نامحرم) ستاينوم او (ساقي) ستايلی دی. د (ځان ويني ځنبل) ترکیب ګړنه او مانا يې (کړاو او درد زغمل) ده.

چې پرده شي نامحرم ساقي ته سپړده
د شرابو په ځای ويني د ځان ځنبي
(۱۰: ۲۹۴)

- د وصال خواږه:

په پورتني تول ترکیب کې(د)تولوييکی (وصال) تولنومی او(خواږه) تولنوم دی. همدارنګه يو تشبيهي ترکیب هم دی (وصال) مشبه (خواږه) مشبه به او ګډ صفت يې (کيفيت، جوړښت) دی.

د وصال خواږه مې زهر شو کهېږم
پکې غم د جدايي زر زر راغی
(۱۰: ۲۹۵)

- د هجر اسيا:

دا ترکیب تولي دی(د) تولوييکی (هجر) تولنومی او(اسيا) تولنوم دی. بلخوا، يو تشبيهي ترکیب هم دی (هجر) مشبه (اسيا) مشبه به او ګډ صفت يې (ځور، رنځ او ټکېدل) دی.

څه بلا سخته دانه يم نه پوهېږم
چې کسيا نه شوم د هجر په اسيا کې
(۱۰: ۲۹۶)

- د مخ څراغ:

دا ترکیب تولي دی (د) تولوييکی (مخ) تولنومی او (څراغ) تولنوم دی. همدارنګه يو تشبيهي ترکیب هم دی (مخ) مشبه (څراغ) مشبه به او ګډ صفت يې (ښکلا او ورانګې خپرول) دی.



چې ځراغ د يار د مخ راته بل نه وي
زه په ګور کې ګڼم ځېسر په دا کور کې
(۱۰: ۲۹۹)

- شين زړه:

دا ترڅک ستاينوميز دی(شين) ستاينوم او (زړه) ستايلی دی. بلخوا د (زړه شين کېدل) بيا ګڼنه او مانا يې(له کړاوه ستړېدل، ځورېدل،کړېدل او رنځېدل) ده.

دا زما له غمه شين زړه پکې خيال د يار د شونډو
هسې رنګ زېب و زينت کا لکه مې په شنه پياله کې
(۱۰: ۳۰۱)

- شهلا سترګې:

په دې ستاينوم ترڅک کې (شهلا) ستاينوم او (سترګې) ستايلی دی.

هسې رنګ سحر و جادو کا په نظر د شهلا سترګو
نه يې سيال په هند کې شته دی نه ثاني په بنګاله کې
(۱۰: ۳۰۱)

- ګلګون مخ:

دا ترڅک تشبيهي دی (ګل) مشبه به (ګون) د تشبيه توری (مخ) مشبه او ګډ صفت يې (ښکلا او جوړښت) دی.

خال و خط په ګلګون مخ کې د دلبرو دا مثال کا
لکه پروت وي غځېدلی خرقه پوش په دو شاله کې
(۱۰: ۳۰۲)

- خونړۍ سترګې:

پورتنی ترڅک ستاينوميز دی (خونړۍ) ستاينوم او (سترګې) ستايلی دی.

چې د ستا له خونړو سترګو آشنا شي
تل به وير وي د هغو په خپلخانې
(۱۰: ۳۰۶)

- د زلفو شب قدر:



په پورتني تول ترړنګ کې (د) تولوييکی (زلفي) تولنومی او (شب قدر) تولنوم دی. بلخوا تشبيهي ترړنګ هم دی (زلفي) مشبه (شب قدر) مشبه به او ګډ صفت يې (ښکلا، خوشبويي او رنګ) دی.

چې روزي يې شه شب قدر ستا د زلفو
کوم شبګير و، روزي شوی د شاني
(۱۰: ۳۰۶)

- د اوښو دُر ګوهر:

په پورتني تول ترړنګ کې (د) تولوييکی (اوښو) تولنومی او (دُر ګوهر) تولنوم دی. بلخوا تشبيهي ترړنګ هم دی (اوښې) مشبه (دُر او ګوهر) مشبه به او ګډ صفت يې (جوړښت او ارزښت) دی.

له لمنو دُر ګوهر د اوښو بويه
تياری د يار د خيال د مهمانۍ
(۱۰: ۳۰۷)

- ياقوتي شونډې:

پورتنی ترړنګ ستاينوميز دی (ياقوتي) ستاينوم او (شونډې) ستايلی دی.

تويول به ورته چا ګوهر د اوښو
که موندی ياقوتي شونډې شوی ارزاني
(۱۰: ۳۰۸)

- د سترګو تېغ:

په پورتني تول ترړنګ کې (د) تولوييکی (سترګې) تولنومی او (تېغ) تولنوم دی. بلخوا يو استعاري ترړنګ هم دی (سترګې) قرينه (تېغ) مستعارمنه (نظر) مستعارله او وجه جامع يې (يورنګ تګ يا حرکت) دی. د (سترګو تېغ تېزول) ترړنګ ګړنه او مانا يې (ځان ښکلی کول / سينګارل، پسولل) ده.

د رنجو په باټ دې تېغ د سترګو تېز کړ
بيا به توی کړې نه پوهېږم د چاويني



(۱۰: ۳۱۰)

- د شبنم اوښې:

دا ترړنګ تولي دی (د) تولوییکی(شبنم) تولنومی او (اوښې) تولنوم دی. بلخوا یو استعاري ترړنګ هم دی (شبنم) قرینه (اوښې) مستعارمنه (څاڅکي) مستعارله او وجهه جامع یې (جوړښت) دی. د (وینې ژړل) ترړنګ ګړنه او مانا یې (درد ګالل / زغمل) ده.

د دې دوو ورځو شپو په آشنایۍ کې
د شبنم په اوښو ژاړي لاله وینې
(۱۰: ۳۱۱)

- مشکین خال:

په پورتني ستاینوم ترړنګ کې (مشکین) ستاینوم او (خال) ستایلی دی.

مشکین خال دې په سرو شونډو هسې زیب کا
لکه مست په میخانه کې ملنګ کښېني
(۱۰: ۳۱۱)

- د عشق بلا:

دا ترړنګ تولي دی (د) تولوییکی (عشق) تولنومی او (بلا) تولنوم دی. بلخوا تشبیهي ترړنګ هم دی(عشق) مشبه (بلا) مشبه به او ګډ صفت یې (مصیبت او ناورین) دی.

هسې زه د عشق بلا په خیر ګڼمه
لکه څوك په خوله کې خوښ د پلنګ کښېني
(۱۰: ۳۱۲)

- د مخ اور:

دا ترړنګ تولي دی (د) تولوییکی (مخ) تولنومی او (اور) تولنوم دی. بلخوا تشبیهي ترړنګ هم دی (مخ) مشبه (اور) مشبه به او ګډ صفت یې (وړانګې) دی.

که دې خط په خاکستر څپلی نه وی



د مخ اور به دې تر اوسه و ملك سوی
(۱۰: ۳۱۵)

- مه جبین:

پورتنی ترڼک تشبیهي دی (مه) مشبه به (جبین) مشبه او ګډه صفت یې (ښکلا او جوړښت) دی.

د ډیــوې د بلـولـو حاجـت نشتــه
په هغه کور کې چې ناست مه جبین ته یې
(۱۰: ۳۱۹)

- د زړه غوټه:

په پورتني تول ترڼک کې (د) تولوییکی(زړه)تولنومی او (غوټه) تولنوم دی. بلخوا یو استعاري ترڼک هم دی (زړه) قرینه (غوټه) مستعارمنه (خبره) مستعارله دی. د (د زړه غوټه پرانتل) ترڼک ګړنه او مانا یې (راز برسېرول ، د زړه خبره ویل) ده.

دم و خود به وي ولاړ د غم له ګوټه
پرانتی به چاته نه شي د زړه غوټه
(۱۰: ۳۲۳)

- مخ په تبۍ تور:

دا ترڼک یوه ګړنه او مانا یې (شرمېدل، ګرمېدل) ده. د (په خره سورول) ترڼک هم یوه ګړنه اومانا یې (شرمېدل ، ګرمېدل) ده.

چې مې یار په سفر تللی زه په کور یم
ګویا مخ په تبۍ تور او په خره سور یم
(۱۰: ۳۲۶)

- د هجران بلا:

په پورتني تول ترڼک کې (د) تولوییکی (هجران) تولنومی او (بلا) تولنوم دی. بلخوا یو تشبیهي ترڼک هم دی (هجران) مشبه (بلا) مشبه به او ګډه صفت یې (مصیبت او رنځ) دي.



ربـه راولي آشنـا په سفـر تللی
ډېر مې وکړ د هجران په بلا صبر
(۱۰: ۳۲۷)

- د هجران ناسور:

پـه پـورتني تـول ترړنـګ کـې (د) تولـوييکی (هجـران) تولنـومی او (ناسـور) تولنـوم دی. بلخـوا يـو اسـتعاري ترړنـګ هـم دی (هجـران) قرينـه (ناسـور) مستعارمنه (کړاو و رنـځ) مسـتعارله دی. د (سـترګې وا کـول) ترړنـګ ګړنـه او مانا يې (غړول، ځېرېدل) ده.

د اشنا په ښکلي مخ مې سترګې واکړې
په ناسور مې د هجران، پورې دوا کړې
(۱۰: ۳۳۰)

- د حسن توره:

په پورتني تول ترړنګ کې (د) تولـوييکی (حسـن) تولنـومی او (تـوره) تولنوم دی. تشبيهي ترړنګ هم دی (حسن) مشبه (توره) مشبه بـه او ګډه صفت يې (اغېز) دی.

لسم کال هسې اوبه ورکړې مشهورې
چې يې وواهه چورنګ د حسن تورې
(۱۰: ۳۴۴)

- د مخ شمع:

پـه پـورتني تـول ترړنګ کـې (د) تولـوييکی (مـخ) تولنومی او (شـمع) تولنوم دی. تشبيهي ترړنګ هم دی (مـخ) مشـبه (شـمع) مشـبه بـه او ګـډه صفت يې (ښکلا او وړانګې) دی.

چې يې بله د مخ شمع روانه شي
هغه دم ورباندې جمع پروانه شي
(۱۰: ۳۵۱)



- خام خُمار:

پورتنی ترړنګ ستاینومیز دی (خام) ستاینوم او (خُمار) ستایلی دی.

خام خُمار يې د تقوی له سره کوز شو
شور و شر چې يې کاوه پوه په رموز شو
(۱۰: ۳۵۸)

- د غرور آس:

په پورتني تول ترړنګ کې (د) تولوييکی (غرور) تولنومی او (آس) تولنوم دی. بلخوا تشبيهي ترړنګ هم دی (غرور) مشبه (آس) مشبه به او ګډ صفت يې (خبز وهل، هوايي تګ) دی.

هی توبه د احتساب له وچو پوچو
د غرور آس مې واهه په کوچو پوچو
(۱۰: ۳۵۹)

- د قهر سرې لمبې:

دا ترړنګ تولي دی (د) تولوييکی (قهر) تولنومی او(سرې لمبې) تولنوم دی. د (سرې لمبې) ترړنګ ستاينوميز دی (سرې) ستاينوم او (لمبې) ستايلی دی. بلخوا ، تشبيهي ترړنګ هم دی (قهر) مشبه (سرې لمبې) مشبه به او ګډ صفت يې (ګرمښت، تودوالی) دی. د (تورو سترګو سره کول) ترړنګ ګړنه او مانا يې (غوسه ښکاره کول / ښوول) ده.

که يو ځل درباندې تورې سترګې سرې که
سرې لمبې به دې د قهر مړې ايرې که
(۱۰: ۳۶۲)

- د قهر زهر:

دا ترړنګ تولي دی (د) تولوييکی (قهر) تولنومی او (زهر) تولنوم دی. بلخوا يو تشبيهي ترړنګ هم دی (قهر) مشبه (زهر) مشبه به او ګډ صفت يې (بدي، تريخوالی) دی. د (پر زړه زهر اوښتل) ترړنګ هم ګړنه او مانا



يې (ډېره غوسه) ده.

چې يې واوښته په زړه د قهر زهر
په دا شور يې کړ خبر حاکم د ښهر
(۱۰: ۳۶۳)

- د زړه زخم:

دا ترڼګ تولي دی (د) تولوييکی (زړه) تولنومی او (زخم) تولنوم دی.

د زړه زخم يې تر خولې سرايت وکړ
د سکوت پهې يې دا کفايت وکړ
(۱۰: ۳۶۹)

- د سپوږمۍ شمع:

دا ترڼګ تولي دی (د) تولوييکی (سپوږمۍ) تولنومی او (شمع) تولنوم دی. بلخوا يو تشبيهي ترڼګ هم دی (سپوږمۍ) مشبه به(شمع) مشبه او ګډ صفت يې (رڼا او روښنايي) ده.

بله شپه چې ځای په ځای د سپوږمۍ شمعې
بلې کړې وې و ځان ته هرې جمعې
(۱۰: ۳۷۲)

- د حسن نور:

دا ترڼګ تولي دی (د) تولوييکی (حسن) تولنومی او (نور) تولنوم دی.

هسې شان يې جلوه ګر د حسن نور شو
چې ښکاره په قصر بام طيور د طُور شو
(۱۰: ۳۷۴)

- د زړه پروانه:

په پورتني تول ترڼګ کې (د) تولوييکی(زړه) تولنومی او (پروانه) تولنوم دی. بلخوا يو استعاري ترڼګ هم دی (زړه) قرينه (پروانه) مستعارمنه (حرکت) مستعارله دی.



پروانه مې شو د زړه د پر نه پاتې
ستا د مخ په ډيوه سوې کانې ماتې
(۱۰: ۳۷۵)

- د محبت لمبه:

دا ترڼګ تولي دی (د) تولوييکی (محبت) تولنومی او (لمبه) تولنوم دی. تشبيهي ترڼګ هم دی (محبت) مشبه (لمبه) مشبه به او ګډ صفت يې (رنځول، سوځول) دی.

په لمبه د محبت موتی ايرې
کېوتلې د غمونو په ګيرې
(۱۰: ۳۷۸)

- د کږو وروځو لينده:

دا ترڼګ تولي دی (د) تولوييکی (کږې وروځې) تولنومی او (لينده) تولنوم دی. د (کږې وروځې) ترڼګ ستاينوميز دی (کږې) ستاينوم او (وروځې) ستايلی دی. بلخوا يو تشبيهي ترڼګ هم دی(کږې وروځې) مشبه (لينده) مشبه به او ګډ صفت يې(کوږوالی اوجوړښت) دی.

د کږو وروځو لينده په لاس بر کښه
کاږه غشي د مږګانو سم په نښه
(۱۰: ۳۸۰)

- سنګين زړه:

په پورتني ستاينوم ترڼګ کې (سنګين) ستاينوم او (زړه) ستايلی دی.

په هنر د پاکوبۍ چې اغاز ګيت کړ
سنګين زړه لکه دانه کور و چيت کړ
(۱۰: ۳۸۳)

- د عقل لښکر:

دا ترڼګ تولي دی (د) تولوييکی(عقل) تولنومی او (لښکر) تولنوم دی. بلخوا يو استعاري ترڼګ هم دی (عقل) قرينه (لښکر) مستعارمنه (زور و



ځواك) مستعارله دی.

یکه تاز حسن دې هسې په خېز کړ
چې لښکر مې یې د عقل په ګرېز کړ
(۱۰: ۳۸۶)

- د عقل پښې:

دا ترڼګ تولي دی (د) تولوییکی (عقل) تولنومی او (پښې) تولنوم دی. د (په زارۍ پښې نیول) ترڼګ یوه ګړنه او مانا یې (ډېره زاري او عاجزي) ده.

که هر څو مې په زارۍ د عقل پښې
نیوې، نه ودرېده لاړ د ځان په ښې
(۱۰: ۳۸۶)

- د ادب شیشه:

دا ترڼګ ستاینومیز دی (د) تولوییکی (ادب) تولنومی او (شیشه) تولنوم دی.

دایره د تحمل شوه باندې تنګه
د ادب شیشه یې وویشته له سنګه
(۱۰: ۳۸۸)

- تورې طالع:

په پورتني ستاینوم ترڼګ کې (تورې) ستاینوم او (طالع) ستایلی دی. بلخوا، استعاري ترڼګ هم دی (طالع) قرینه (تور) مستعارمنه (بد او ناوړه) مستعارله دی.

د عاشق تورې طالع، څه خو وبرېښنه
ګوندې وکه باندې یار د مهر پېښنه
(۱۰: ۳۹۴)

- د ګلو خرمن:

په پورتني تول ترڼګ کې (د) تولوییکی (ګلو) تولنومی او (خرمن) تولنوم



دی.

په پالنګ لکه د ګلو خرمن پرېووت
که لوګری په چمن د ګلو پرېووت
(۱۰: ۳۹۴)

- د مخ لمبه:

دا ترېنګ تولي دی (د) تولوییکی (مخ) تولنومی او (لمبه) تولنوم دی.
بلخوا ، استعاري ترېنګ هم دی (مخ) قرینه (لمبه) مستعارمنه (د ښکلا او ښایست وړانګې) مستعارله دی.

سرومال زما د مخ په لمبه بس
لکه خس هسې سېځي په هر نفس
(۱۰: ۳۹۷)

- د زړه لال:

دا ترېنګ تولي دی (د) تولوییکی (زړه) تولنومی او (لال) تولنوم دی.
بلخوا ، یو تشبیهي ترېنګ هم دی (زړه) مشبه (لال) مشبه به او ګډ وصف یې (سوروالی او جوړښت) دی.

د زړه لال د عشق ساز په ترحم کې
خوله په مهر عذر خواه په تبسم کې
(۱۰: ۳۹۸)

- لاس په غوږ :

دا ترېنګ یوه ګړنه او مانا یې (بېزار، توبه ایستونکی) ده.

د اغیارو له مجلسه لاس په غوږ
شماره ځان د یار د مینې په در وږ
(۱۰: ۳۹۸)





- د مهر دم:

په پورتني تول ترکيب کې (د) تولوییکی (مهر) تولنومی او (دم) تولنوم دی.

چې يې دم  وربانديې ډېر د مهر پو کړ
بې رحمې شلولې زخم يې رفو کړ
(۱۰: ۳۹۸)

- د سترګو اوبه:

دا ترکیب تولي دی (د) تولوییکی (زړه) تولنومی او (لال) تولنوم دی.
بلخوا، یو استعاري ترکیب هم دی (سترګې) قرینه (اوبه) مستعارمنه او مستعار (اوښکې) مستعارله او وجه جامع يې (جوړښت) دی.

له خسته يې د يارانو کړم بيان څه
په اوبو د سترګو لاس وينځم عيان څه
(۱۰: ۴۰۰)

- د اُميد لال:

دا ترکیب تولي دی (د) تولوییکی (اُمید) تولنومی او (لال) تولنوم دی.

چې همای باندې د بخت سایه ګستر شو
د امید لال یې روښن په خاکستر شو
(۱۰: ۴۰۲)

- د عقل چمبه:

دا ترکیب تولي دی (د) تولوییکی(عقل) تولنومی او(چمبه) تولنوم دی.
بلخوا، یو استعاري ترکیب هم دی (عقل) قرینه (چمبه) مستعارمنه (واک او ځواک) مستعارله دی.

مينه نه اوسي د عقل په چمبه کې
پټ ساته نه شي بخرې په پومبه کې
(۱۰: ۴۱۰)

- ميګون حسن:

پورتنی ترکیب تشبیهي دی (مې) مشبه به (ګون) د تشبیه توری او(حسن)



مشبه دی. همدارنګه (میګون) ستاینوم او (حسن) ستایلی دی، په دې توګه پورتنی ترنګ ستاینومیز هم دی. د (آتشي شونډې) ستاینوم ترنګ کې (آتشي) ستاینوم او (شونډې) ستایلی دی.

چې په مینه د میګون حسن خراب شو
په آتش د آتشي شونډو کباب شو
(۱۰: ۴۱۲)

- د وروځو محراب:

دا ترنګ تولي دی (د) تولوییکی (وروځو) تولنومی او (محراب) تولنوم دی. بلخوا، یو تشبیهي ترنګ هم دی (وروځې) مشبه (محراب) مشبه به او ګډ صفت یې (جوړښت) دی.

په قیام، که په سجود ، که په رکوع دی
و محراب ته یې د وروځو په رجوع دی
(۱۰: ۴۱۳)



- د جمال ډیوه:

دا ترنګ تولي دی (د) تولوییکی (جمال) تولنومی او (ډیوه) تولنوم دی.

په ډیوه یې د جمال په هر پرتو
پروانه په سرومال دی ورته دو
(۱۰: ۴۱۳)

- د کینې، غصې لښکر:

دا ترنګ تولي دی (د) تولوییکی (کینې او غصه) تولنومی او (لښکر) تولنوم دی. بلخوا، یو استعاري ترنګ هم دی (کینه و غصه) قرینه (لښکر) مستعارمنه (زور و ځواك) مستعارله دی.

د کینې غصې لښکر په هجوم ټول شو
یك منت د نازنین په غولي غول شو
(۱۰: ۴۱۴)

- ګوته په غاښېدل:



دا ترکیب گړنه او مانا یې (هېښېدل، حیرانېدل) ده.

د حسرت ګوتې په غاښ کړې هندو ګبر
وې یې ګورۍ دا بې جرمه جور جبر
(۱۰: ۴۱۴)

- د سپینو اوښو سیند:

دا ترکیب تولي دی (د) تولوییکی(سپیني اوښې) تولنومی او (سیند) تولنوم دی. د (سپیني اوښې) ستاینوم ترکیب کې (سپېني) ستاینوم او (اوښې) ستایلی دی. د (غم غبار) تول ترکیب کې (د) تولوییکی (غم) تولنومی او (غبار) تولنوم دی.

ته یې سیند د سپینو اوښو په مخ باندې
کړه یې زړه د غم غبار تر سیاهۍ لاندې
(۱۰: ۴۱۶)

- د فکر دروازه:

دا ترکیب تولي دی (د) تولوییکی(فکر) تولنومی او (دروازه) تولنوم دی. د (فکر دروازه لرې کول) ترکیب ګړنه او مانا یې (پام کول، ځیرېدل، غوږ نیول) ده.

واړه یو ځله آغازې کړې خبرې
هر یوه کړه دروازه د فکر لرې
(۱۰: ۴۲۰)

- د کرم اوبه:

دا ترکیب تولي دی (د) تولوییکی (کرم) تولنومی او (اوبه) تولنوم دی. بلخوا، تشبیهي ترکیب هم دی (کرم) مشبه (اوبه) مشبه به او ګډه صفت یې(سړول، له غضب او اور سره ضدیت) دی. د (غضب اور) تول ترکیب کې (د) تولوییکی (غضب) تولنومی او (اور) تولنوم دی. بلخوا، تشبیهي ترکیب هم دی (غضب) مشبه (اور) مشبه به او ګډه صفت یې (کړول، رنځول، له کرم، سوړوالي او اوبو سره ضدیت) دی.



د کرم په اوبو مړ د غضب اور کړه
بېرته وجار وځه سخ زما په کور کړه
(۱۰: ۴۲۳)

- ګرمې اوبښې:

پورتنی ترړنګ ستاینومیز دی (ګرمې) ستاینوم او (اوبښې) ستایلی دی.

د یتیم د ګرمو اوښو په ګداز ږو
د بېکس و بېچاره په سوز و ساز ږو
(۱۰: ۴۳۰)

- د ناز پی:

په پورتني تول ترړنګ کې (د) تولوییکی (ناز) تولنومی او (پی) تولنوم دی.

وې يې وايه ای د ناز په پيو لويه
بسم الله له بسم الله اغازي بويه
(۱۰: ۴۴۱)

- د هجر تېغ:

په پورتني تول ترړنګ کې (د) تولوييکی (هجر) تولنومی او (تېغ) تولنوم دی. بلخوا، یو تشبيهي ترړنګ هم دی (هجر) مشبه (تېغ) مشبه به او ګډه صفت يې (ځورول و رنځول) دی.

که وایم مه ځه ملالېږې، ملالېږم
که وایم ځه په تېغ د هجر حلالېږم
(۱۰:۴۵۴)

- د هجران تاب:

دا ترړنګ تولي دی (د) تولوييکی (هجران) تولنومی او (تاب) تولنوم دی.

چې له تابه د هجران بې آب و تاب شو
له خپل زړه سره په دا سوال و جواب شو
(۱۰: ۴۶۴)

- د زنې سېب:

په دې تول ترړنګ کې (د) تولوييکی (زنې) تولنومی او (سیب) تولنوم دی.



بلخوا، یو تشبیهي ترڼک هم دی (زنه) مشبه (سیب) مشبه به او ګډ صفت يې (ښکلا او جوړښت) دی.

- وار و پار خطا کېدل:

دا ترڼک ګړنه او مانا يې (ډارېدل، بوږنېدل) ده.

بې آسیبه سیب د زنـې ور عـطاء شـو
په تش بوی سره يې وار و پار خطا شو
(۱۰: ۴۷۳)

- د لبانو لال:

په پورتني تول ترڼک کې (د) تولوییکی(لبان) تولنومی او (لال) تولنوم دی.
بلخوا، یو تشبیهي ترڼک هم دی (لبان) مشبه (لال) مشبه به او ګډ صفت يې (سوروالی) دی.

لا يې لعل د لبانو درخشـان وو
د غمزې تېغ يې تېره په هغه شان وو
(۱۰: ۴۷۸)

- د سترګو خار:

دا ترڼک تولي دی (د) تولوییکی (سترګې) تولنومی او (خار) تولنوم دی.
همدارنګه یوه ګړنه هم ده او مانا يې (خنډ، مانع ، غماز او رقیب) ده.

چې شاهد د هر شاهد د سترګو خار
لکه ګل په مخ نګار په زړه افګار
(۱۰: ۵۰۶)

- د غوږو دُر:

دا ترڼک تولي دی (د) تولوییکی(غوږو) تولنومی او (دُر) تولنوم دی.

بېرته وجار ابسته ترکو دُر د غوږو
جوهـریانو ته د دې دُرو په زوږو
(۱۰: ۵۳۹)

- د اُمید کمند:



دا ترکیب تولي دی (د) تولوییکی (اُمید) تولنومی او (کمند) تولنوم دی.

چې کمند مې ورته ایښی د اُمید دی
که مې ونیوه ستا فضل غوره صید دی
(۱۰: ۵۵۸)

- لاس اوږدول:

دا ترکیب ګړنه او مانا یې (مرسته غوښتل، خیر غوښتل) ده.

و هر خیز ته چې یې لاس اوږد د آرزو شه
په آرزو یې د شرف قبول پېرزو شه
(۱۰: ۵۷۳)

- د اُمید بړوسه غونچه:

دا ترکیب تولي دی (د) تولوییکی (اُمید) تولنومی او (بړوسه غونچه) تولنوم دی. د (بړوسه غونچه) ترکیب ستاینومیز دی (بړوسه) ستاینوم او (غونچه) ستایلی دی.

د نسیم په خبر پېره په باغ زما کړه
د اُمید بړوسه غونچه مې په خندا کړه
(۱۰: ۵۷۷)

- د هجر رنځ:

دا ترکیب تولي دی (د) تولوییکی (هجر) تولنومی او (رنځ) تولنوم دی. بلخوا، یو تشبیهي ترکیب هم دی (هجر) مشبه (رنځ) مشبه به او ګډ صفت یې (ځورول او کړول) دی.

خاصیت د شفا نه دی ځني تللی
پرې رغېږي رنځ د هجر پرېستلی
(۱۰: ۵۸۳)

- د عشق ژامه:

دا ترکیب تولي دی (د) تولوییکی (عشق) تولنومی او (ژامه) تولنوم دی.



چې ژوولی د عشق ژامو په خوند نه وي
د هغه ژوي به هېچرې خوند نه وي
(۱۰: ۵۸۸)

- د سخن دُر:

په پورتني تول ترڼګ کې(د) تولوييکی (سخن) تولنومی او (دُر) تولنوم دی. بلخوا، تشبيهي ترڼګ هم دی (سخن) مشبه (دُر) مشبه به او ګډ صفت يې (ارزښت) دی.

څو د زړه په وينو وللي مخ د سخن شي
سرخرويي هومره دُر د سخن شي
(۱۰: ۵۹۳)

- د زړه د غوږو دُر:

دا ترڼګ تولي دی (د) تولوييکی (زړه، غوږ) تولنومی او (دُر) تولنوم دی.

چې په مياشت شي لکه مياشت يوه دهره
ده د زړه د غوږو دُر هغه خبره
(۱۰: ۵۹۴)

- د وروځو لينده:

دا ترڼګ تولي دی (د) تولوييکی (وروځو) تولنومی او (لينده) تولنوم دی. بلخوا، يو تشبيهي ترڼګ هم دی (وروځې) مشبه (لينده) مشبه به او ګډ صفت يې(کوږوالی اوجوړښت) دی.

چې به ده لينده د وروځو کړه بر کښنه
د حرم هوسو به ځان کړه ورته نښنه
(۱۰: ۶۰۶)

- د غم غر:

دا ترڼګ تولي دی (د) تولوييکی(غم) تولنومی او (غر) تولنوم دی. بلخوا، يو تشبيهي ترڼګ هم دی (غم) مشبه (غر) مشبه به او ګډ صفت يې (لويوالی اوجوړښت) دی.



له ژړا يې مخ د صبح په لاس وچ کړ
په وفا يې د غم غر له زړه رچ پچ کړ
(۱۰: ۶۱۸)

- د اوښو روږ:

دا ترڼګ تولي دی (د) تولوييکی (اوښې) تولنومی او (رود) تولنوم دی.

کله پاځه کله کښېنه لارې ګوره
د راتلو په رو يې رود د اوښو ګوره
(۱۰: ۶۲۱)

- د زلفو دام:

دا ترڼګ تـولي دی (د) تولـوييکی (زلفـې) تولنـومی او (دام) تولنـوم دی.
بلخـوا، يـو تشـبيهي ترڼـګ هـم دی (زلفـې) مشـبه (دام) مشـبه بـه او ګـډ صفت يې (جوړښت او راګيرول) دی.

په ځېره چې دام د زلفو د زېب کېږدي
دوبـاره پکـې دانـه د فـرېب کېږدي
(۱۰: ۶۲۵)

- اور پورې کول:

دا ترڼګ ګړنه او مانا يې (يو څه ته شا کول، هېرول، ناپامي) ده.

هسې رنګ به سره لمبه قهر و غضب که
تا به وې چې اور يې پورې په مکتب که
(۱۰: ۶۳۲)

- د غم خاورې:

دا ترڼګ تولي دی (د) تولوييکی (غـم) تولنـومی او (خـاورې) تولنـوم دی. د (غم خاورې خوړل) ګړنه اومانا يې (غمېدل او کړېدل) ده.

سيده سترګې سپړدې نه وې په هوس ما
بيا خوړلې د غم خاورې پکې بس ما
(۱۰: ۶۳۴)

- د غصې غبار:



دا ترېنګ تولي دی (د) تولوييکی (غصه) تولنومی او (غبار) تولنوم دی. د (کينې زنګار) ترېنګ تولي دی (د) تولوييکی (کينې) تولنومی او (زنګار) تولنوم دی.

د غصې غبار يې لرې له سينې شه
د کينې زنګار يې ورك له آيينې شه
(۱۰: ۶۳۵)

- د آزار اور:

دا ترېنګ تولي دی (د) تولوييکی (آزار) تولنومی او (اور) تولنوم دی. بلخوا، يو تشبيهي ترېنګ هم دی (ازار) مشبه (اور) مشبه به او ګډ صفت يې (رنځول او کړول) دی.

د کرم په اوبو مړ د ازار اور کا
په عطا سره خطا زما در ګور کا
(۱۰: ۶۳۶)

- مرمر لب:

پورتنی ترېنګ ستاينوميز دی (مرمر) ستاينوم او (لب) ستايلی دی. همدارنګه يو تشبيهي ترېنګ هم دی (مرمر) مشبه به (لب) مشبه او (جوړښتي يورنګي) يې ګډ وصف دی.

خبردار يې په اسرار اهل مکتب شه
له دې بابه ګفتګوی په مرمر لب شه
(۱۰: ۶۳۸)

- د سترګو خس / د سترګو خس کېدل:

دا ترېنګ تولي دی (د) تولوييکی (سترګو) تولنومی او (خس) تولنوم دی. همدارنګه يوه ګړنه هم ده . مانا يې (خنډ او مانع) ده.

که د خسو وي رقيب د سترګو خس وي
پناه وشه چې حاکم وي يا عسس وي
(۱۰: ۶۴۱)



- د زړه سوي لوګی:

دا ترړنګ تولي دی (د) تولوییکی (زړه سوي) تولنومی او(لوګی) تولنوم دی. د (آتشي آه) ترړنګ ستاینومیز دی (آتشي) ستاینوم او (آه) ستایلی دی.

چې به ده آتشـي آه کړ له زړه تنګ
د زړه سوي لوګی به شه له هره سنګ
(۱۰: ۶۴۳)

- د وصل شربت:

دا ترړنګ تولي دی (د) تولوییکی (وصل) تولنومی او(شربت) تولنوم دی. همدارنګه یو استعاري ترړنګ هم دی (وصل) قرینه (شربت) مستعارمنه (خوږوالی) مستعارله دی.

چاچې رنځ وي د هجران په ځان پېڅلی
عاقبت يې دی د وصل شربت څښلی
(۱۰: ۶۵۹)



- مستې سترګې:

دا ترړنګ ستاینومیز دی (مستې) ستاینوم او(سترګې) ستایلی دی.

ګوره سره ګلونه سره جامونه د لاله وو
مستې سترګې د شپږ مستو غزالـه وو
(۱۰: ۶۷۱)

- بړوسې شونډې:

دا ترړنګ ستاینومیز دی (بړوسې) ستاینوم او (شونډې) ستایلی دی. د (شبنم سپینې غوټۍ) ترړنګ هم تولي دی (د) تولوییکی (شبنم) تولنومی او (سپینې غوټۍ) تولنوم دی. د (سپینې غوټۍ) ترړنګ ستاینومیز دی (سپینې) ستاینوم او (غوټۍ) ستایلی دی.



بړوسي شونډې د غونچې ګل خندان شوې
د شبنم سپيني غوټۍ پکې دندان شوې
(۱۰: ۶۷۷)

- عنبر مویه:

دا ترڅک ستاینومیز دی (عنبر) ستاینوم او (مويه) ستايلي دی. همدارنګه (عنبر) مشبه به(موی) مشبه او ګډ صفت يې (توروالی او خوشبويي) دی، نو یو تشبيهي ترکیب هم دی.

له سبزۍ شوه ښیوه د عنبر مويو
سره لاله یې اننګي وو د خوب رويو
(۱۰: ۶۷۹)

- د شفق پیالې:

دا ترکیب تولي دی (د) تولوییکی(شفق) تولنومی او (پیالې) تولنوم دی.

چې تمامې یې پیالې کړې د شفق
له مستۍ نه ستوري راغله په حق حق
(۱۰: ۶۸۶)

- د خوښۍ ډیوه:

دا ترکیب تولي دی (د) تولوییکی (خوښۍ) تولنومی او (ډیوه) تولنوم دی.
د (خوښۍ ډیوه بلېدل) ګړنه اومانا يې (خوښېدل، خوښي) ده.

د خوښۍ ډیوه یې بله هسې ځای کړه
چې پېره پرې پروانه خوار ګدای کړه
(۱۰: ۶۸۷)

- د زړه رڼا:

دا ترکیب تولي دی (د) تولوییکی (زړه) تولنومی او (رڼا) تولنوم دی.

وې يې ورشم هغه شاه د مجلس شمع
په رڼا د زړه وګورم د زړه جمع
(۱۰: ۶۸۹)

- لاسونه مښل:



دا ترڼګ ګړنه او مانا يې (ارمان کول، پښېماني) ده.

چې به نورو جام په لاس که د عشرت
ده به منبل سره لاسونه د حسرت
(۱۰: ۶۹۰)

- د مينې پيالې:

دا ترڼګ تولي دی (د) تولوييکی (مينه) تولنومی او (پيالې) تولنوم دی.

شاه نوشلي پياپی پيالې د مينې
ښبې ګدا کاسې د ځيګر وينې
(۱۰: ۶۹۰)

- د صبر اور:

دا ترڼګ تولي دی (د) تولوييکی (صبر) تولنومی او (اور) تولنوم دی. بلخوا ، تشبيهي ترڼګ هم دی (صبر) مشبه (اور) مشبه به او ګډه صفت يې (رنځول، کړول، سختوالی) دی. د (خاطر جمع کېدل) ترڼګ ګړنه او مانا يې (ډاډمنېدل) ده.

وې يې مه کوه وسواس خاطر کړه جمع
کړه د صبر په اور بله د مراد شمع
(۱۰: ۷۰۱)

- د روح مرغه:

دا ترڼګ تولي دی (د) تولوييکی (روح)تولنومی او (مرغه) تولنوم دی. بلخوا ، تشبيهي ترڼګ هم دی (روح) مشبه (مرغه) مشبه به او ګډه صفت يې (الوتل) دی.

که د زوی لړ و ډېر په خوب لارغه شي
الوتو ته ساز د پلار د روح مرغه شي
(۱۰: ۷۰۶)

- د ګل تاج:

دا ترڼګ تولي دی (د) تولوييکی (ګل) تولنومی او (تاج) تولنوم دی.



د هر ښاخ له سره پرېووت د ګل تاج
تاج و تخت شو د چمن تاخت و تاراج
(۱۰: ۷۳۱)

- د پوزې پرې کېدل:

پورتنی ترڼک ګړنه او مانا يې( پېغورېدل ، پېغورسازېدل، شرمېدل) ده.

څو يې نه کاندي وفا د پوزې پرې
يار د يار د جفا بار دې کله وړی
(۱۰: ۷۳۲)

- د مرګ غشی:

دا ترڼک تولي دی (د) تولوييکی(مرګ) تولنومی او (غشی) تولنوم دی.

دم پـه دم يې زياتېـدلـه بيمـاري
د مرګ غشـي يې خوړلی وو کـاري
(۱۰: ۷۳۵)

- د اُميد نمر:

دا ترڼک تولي دی (د) تولوييکی (اُميد) تولنومی او (نمر) تولنوم دی.

چې درويش په بادشاهت د شاه خبر شه
د کـرم نعـره يې هسك د اُميد نمر شـه
(۱۰: ۷۴۵)

- ارمان خوړل:

دا ترڼک ګړنه او مانا يې (ارمان کول، پښېمانېدل، ارمانجنېدل) ده.

تا چې تېز تېزه سمند د خودرايۍ
ما د ستا د پرېوتو هله ارمان خوړ
(۹: ۲)

- اسماني کاڼي پرېوتل:

دا ترڼـک يـوه ګړنـه او مانـا يـې (ناڅـاپي پـه کـړاو پرېوتـل، پـه اند ښېنـنو ککړېدل) ده.

نه مې دم قدم په يوه غم کا مخ په لارې



نه اسماني کاڼی په ما پرېووت څه بلا یم
(۹: ۳)

- انګشت نما کېدل:

دا ترېنګ یوه کړنه او مانا یې (رسواکېدل، موخه کېدل، نوم بدي) ده.

څه له کا د حسن لاف صاحب جمال
خود به شي انګشت نمای لکه هلال
(۹: ۴)

- د اوسپنو چنې چیچل:

پورتنی ترېنګ یوه کړنه او مانا یې (ستونزې او خواري ګالل) ده.

چې د اوسپني چنې شوې پرې چیچلي
خدایزده پخ کړه، هغه غاښ کومو ترشو
(۹: ۶)

- ایمان خوړل:

دا ترېنګ یوه کړنه او مانا یې (ډېر زیانمنېدل، زیان ګالل، بې ننګه کېدل) ده.

تش ارمان د ستا په مرګ هغو ونه خوړ
چې د دوی د پاره تا دین و ایمان خوړ
(۹: ۷)

- بلا پسې کول / کېدل:

دا ترېنګ یوه کړنه او مانا یې (بې ارزښته ګڼل، بې پروا کېدل، نهیلی) ده.
همداسې (لېمه سپینېدل) ترېنګ هم کړنه او مانا یې (ډېره ژړا، ډېر ژړل ) ده.

ما په یار پسې لېمه په ژړا سپین کړه
یار په ما پسې کوي توره بلا
(۹: ۱۳)

- پام په ښو کېدل:

پورتنی ترېنګ یوه کړنه اومانا یې ( پاملرنه، لورېینه) ده.



ربــه ! فـهم کړي د یار راته په ښو
د رقیب په خرخشو مې کړې په ښو
(۹: ۱۷)

- پل کېښوول:

پورتنی ترنګ ګړنه او مانا یې (روانېدل، پیلول، لاس پورې کول) ده. د دې ترځنګ (سینه دوه نیمه کېدل) بله ګړنه او مانا یې (غمېدل او ځورېدل) ده.

د قلم چاودې سینه ګوره دوه نیمه
هله پل ږده د څره سخن په سیمه
(۹: ۲۱)



- پلو لرې کول:

دا ترنګ یوه ګړنه او مانا یې (مخ ښکاره کول، مخ څرګندول او بربنډول) ده.

کـه یې څوك له مخه لـرې کـه پلو
د ښایست مخـې یې نـشته هېڅ پلو
(۹: ۲۱)

- د پندار په آس سورېدل:

پورتنی ترنګ یوه ګړنه او مانا یې (ګومان، اټکل، خیال، ځان غولول) ده.

ماته عین په سور مخ، مختور لیده شي
د پندار په آس سوره له ځانه خوښه
(۹: ۲۱)

- تشې شلومبې شاربل:

دا ترنګ یوه ګړنه او مانا یې (بې ګټې کار کول، بې پایلې کار کول) ده.



هغه تشې شلومبې شاربې سرخوړی کا
چې ښادي غواړي بې غمه بې منته
(۹: ۲۵)

- پر تندي اور بلول:

پورتنی ترږنګ یوه ګړنه او مانا یې (غم ګالل، کړاو زغمل، په غم ککړول) ده.

زه د شمعې په څېر اور په تندي بل کړم
ته د صبح په څېر خاندې له غروره
(۹: ۲۶)

- پر تور سپین اړول:

دا ترږنګ یوه ګړنه او مانا یې (ځورول، ربړولو ته پلمه لټول) ده.

ډېر مې ماړوه په تورو سپین صنمه
چې خوني به په خپل ځان یم ستا له غمه
(۹: ۲۸)

- ځان اورته اچول:

پورتنی ترږنګ یوه ګړنه او مانا یې (ځان غمول، کړول، ربړول) ده.

عاشقي په اختیار نه کېږي هوښیار شه
ځان و اور ته اچول اختیار د چا دی
(۹: ۳۸)

- پرځان بلاکېدل:

دا ترږنګ یوه ګړنه او مانا یې (ځان ته غم کېدل، ځان ته غم کتل) ده.

د داني په طمع بند ازاد مرغه شي
زر به ستا په ځان بلا شي دا ستا طمع
(۹: ۳۹)

- تر ځان تېرېدل:

پورتنی ترږنګ یوه ګړنه او مانا یې (بلهاري، سرښندنه، قرباني) ده.

زه و یار ته تر ځان تېر یم



دی و مـاتـه پـه عنـاد
(۹: ۴۰)

- ځان جهان ځني نه دریغول:

دا ترنګ یوه ګړنه او مانا یې (قربانېدل، سربښندنه) ده.

هېڅوك به دریغ نه کا ځني ځان جهان په صبر
وويني کـه دا حسن و جمال دلجوی د ستا
(۹: ۴۱)

- ځان شمارل/ شمېرل:

پورتنی ترنګ یوه ګړنه او مانا یې (ځان پـه څـه کـې ګڼل، راوسـتل، د ځان دريځ ټاکل) ده.

د خلوت له عزیزانو مې زړه تور شه
ځان مې وشماره د ترکو په کندي بیا
(۹: ۴۵)

- ځان غتول:

دا ترنګ یوه ګړنه او مانا یې (تعظيم، ځان لوی ګڼل) ده.

چې د دين دانايي نه لري په زړه کې
بېهوده ځان غتوي په خوله يې پوه
(۹: ۴۶)

- ځان کوتل:

پورتنی ترنګ یوه ګړنه او مانا یې (ځان وهل، ځان حلالول، ځان وژل) ده.

دا د عشق طاعونی رنځ به یې ارمان شي
کـه د زهـد ځـان کوتلی شي ژوندي بیا
(۹: ۴۸)

- ځان مړل:

دا ترنګ یوه ګړنه او مانا یې (ځـان نـړدې کولـو تـه پلمـه لټول، ځـان نـږدې کول) ده.

هېڅ شفقت زما د يار په رقيب نه شته



محض مړي پورې ځان زما په ښـو

(۹: ۴۹)

- ځان ورکول:

پـورتنی تړنـګ یـوه ګړنـه او مانـا یـې (بلهارنـه، ځـان قربـانول، فنـاکول، لـه ځان بې خبره کېدل) ده.

په هـوی پسـې د نس سر هـوا مـه ځه
ځان به ورك کړې لکه برق په دا شتاب

(۹: ۵۰)

- خاورې پر تندي لوستل (لونل):

دا تړنـګ یـوه ګړنـه او مانـا یـې (درنـاوی کـول، د یـار د در د خـاورو قـدر کول) ده.

پــرېـواتــه د رقیبانــو په ســر کـانـې
ما چې خاورې ستا د در په تندي لوستې

(۹: ۶۴)

- خپرې ښتل:

پورتنی تړنګ یوه ګړنه او مانا یې (ګواښ کول، ډارول) ده.

عاقبت د عشق زمري راباندې ترپ کا
چې ښتلې یې مـدام راتـه خپرې

(۹: ۶۶)

- خره خسي کول:

دا تړنـګ یـوه ګړنـه او مانـا یـې (بې ګټې او خوشې کـار کـول، چونګښـې نالول ) ده.

ډېر مې خره خسي کول وکړه پوه نه شوم
ریش کـنده، جامـه پاره لـه لېونتوبه

(۹: ۶۷)



- خوب لیدل:

پورتنی ترڼک یوه کړنه او مانا یې (لـه خیالـ سره لوبېـدل، سـوچونه کـول ) ده.

د دنیـا هـوئ هـوس د خوب لـیـده دي
چې خوب وړی شي راویښ، نه شي بیا هېڅ
(۹: ۷۰)

- د خولې خوند ورانېدل:

دا ترڼک یوه کړنه او مانا یې (خوله بې خونده کېدل، خپه کېدل، اړېکي شلېدل) ده.

د جهان چې د خولې خوند په لباس وران شه
پرې لـذت زهـر، زقـوم دی د اخـلاص
(۹: ۷۳)

- دم ختل:

دا ترڼک یوه کړنه او مانا یې (ساه ختل، چپ کېدل، ګونګېدل، مړ کېدل) ده.

چې یې دم له غمه نه خېژي په عشق کې
خو حیران د عاشقـانو په ژونـدون یم
(۹: ۸۱)

- دم وهل:

پورتنی ترڼک یـوه کړنـه او مانـا یې(څه ویـل، نظر څرګندونـه، ګیلـه ګـول، خبره کول) ده.

په یوه نفس حباب له بحره بېل شه
نه شته هېڅ په دم وهلو کې بهبود
(۹: ۸۱)

- دندان سپینول:

دا ترڼک یوه کړنه او مانا یې (خندا، خندل ) ده.



د حیــا پــــه کــور مې واوري ږلـۍ
په خندا چې راته سپین کاندي دندان شوخ
(۹: ۸۲)

- رنګ تښتېدل:

پورتنی ترکیب یوه ګړنه او مانا یې (پیکه کېدل، خجالت کېدل ) ده.

په لیده مې د یار وتښتي رنګ هسې
لکه نور په کتان لګي د مهتاب شوخ
(۹: ۸۷)

- زړه وړل:

دا ترکیب یوه ګړنه او مانا یې (مینېدل، زړه بایلل ) ده.

نه به ترکو وړی زړه راشي په لاس
نه به مړي شي د ګور بېرته ستانه
(۹: ۱۴۳)

- زړه یخول:

پورتنی ترکیب یوه ګړنه او مانا یې (ارمان وتل، کسات اخېستل ) ده.

لکــه ته کــوې د بــل پــه مــرګ اخ اخ
ستا په مرګ به هسې زړه کاندي څوك یخ
(۹: ۱۴۸)

- ژبه خوږول:

پورتنی ترکیب یوه ګړنه او مانا یې (پستې او خوږې خبرې کول، ښه خوی) ده.

دا رمــوز کــا د یار خط په ماته ژبه
چې خوږه کړه نن ساعت په ماته ژبه
(۹: ۱۵۰)



# اخځونه


۱ ـ رښتين زيور، زرغونه (۱۳۸۲ ل) پښتو نحوه. پېښور، ساپي د پښتو څېړنو او پراختيا مرکز.

۲ ـ رښتين، صديق الله (۱۳۷۷ ل) د پښتو ادب تاريخ. پېښور، ساپي د پښتو څېړنو او پراختيا مرکز.

۳ ـ رښتين، صديق الله (۱۳۸۳ ل) د پښتو اشتقاقونه او ترکيبونه. پېښور، ساپي د پښتو څېړنو او پراختيا مرکز.

۴ ـ روهي، محمد صديق (۱۳۶۰ ل) ادبي څېړنې . کابل، د لوړو او مسلکي تحصيلاتو وزارت.

۵ ـ زيور، زيورالدين (۱۳۸۶ ل) ادبتاريخ (منځنۍ دوره). پېښور، ساپي د پښتو څېړنو او پراختيا مرکز.

۶ ـ زيار، مجاوراحمد. (۱۳۸۴ ل). پښتو پښويه. پېښور، دانش خپرندويه ټولنه.

۷ ـ زيار، مجاوراحمد (۱۳۸۹ ل) پښتو بدلمېچ يا پښتو شعر څنګه جوړېږي ؟ پېښور، دانش خپرندويه ټولنه.

۸ ـ سنګروال نيازی، شهسوار (۱۳۷۵ ل) د پښتو ادبياتو معاصر تاريخ. پېښور، دانش خپرندويه ټولنه.

۹ ـ صميم، محمدآصف (۱۳۷۸ل) د لرغوني شاعرۍ ګړنې. جرمني، د پښتني فرهنګ د ودې او پراختيا ټولنه .

۱۰ ـ مومند ، عبدالحميد (۱۳۸۳ ل) کليات. پېښور، دانش خپرندويه ټولنه.

۱۱ ـ هاشمي، سيد محی الدين (۱۳۸۱ ل) ادبپوهنه. پېښور، د اريك د ګرځنده کتابتونو اداره.






۱۲ ـ هاشمي، سید محی الدین (۱۳۸۳ ل) د پښتو ژبې لنډ ګرامر. پېښور، د اریك د ګرځنده کتابتونو اداره.
۱۳ ـ هېوادمل، زلمی (۱۳۷۳ ل) په هند کې د پښتو ژبې اوادبیاتو د ایجاداو ودې پړاوونه . لاهور شرکت پرنټنګ پرېس.
۱۴ ـ هېوادمل، زلمی (۱۳۷۹ ل) د پښتو ادبیاتو تاریخ (لرغوني او منځنۍ دوره). پېښور، دانش خپرندویه ټولنه.





# مننه او کور ودانـي

د افغانستان ملي تحريک د هېواد پال او فرهنګپال شخصيت ښاغلي (الحاج وحيدالله وليزي) څخه د زړه له تله مننه کوي چې د دې اثر چاپ ته يې اوږه ورکړه. ملي تحريک وياړي چې د علمي اثارو د چاپ لړۍ يې پيل کړې ده. دا لړۍ به دوام لري. موږ له ټولو درنو هېوادوالو څخه په خورا درنښت هيله کوو چې په خپل معنوي او مادي وس د کتابونو د چاپ دا لړۍ لا پسې وغځوي.

يو ځل بيا ددې اثر له ليکوال او چاپوونکي څخه د زړه له تله مننه کوو چې ددې اثر د ليکلو او چاپولو جوګه شول.

په فرهنګي مينه

د افغانستان ملي تحريک



